


د پوهنې وزارت

# ریاضي

## دریم ټولګی







$۶ - ۱ < ۶ + ۱$

$۹ + ۲ > ۱۰$

$۶ + ۵ = ۱۱$

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ . ش.



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، ګوجر دي — پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان
دا هېواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مودی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




**د پوهنې وزارت**

# رياضي

## دريم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ.ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** ریاضي

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د ریاضي دیپارتمنت د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** دریم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

لړلیک

# لومړی فصل

## په عددونو کې دارقامو مقامي قيمت



### لومړی لوست: د رقمونو مقامي قيمت

هدف:زده کوونکي به د يو رقم مقامي قيمت په اړوندو مرتبو کې تشخيص کړای شي .

گرانو زده کوونکو تاسو مخکې د يويزو، لسيزو او سليزو مرتبې پيژندلې دي. دا چې د عددونو په ليکلو کې د مرتبو پيژندل مهم دي، يو ځلې بيا د هغو يادونه کوو.

**پام وکړئ:**







١٠٠ ١٠ ١







١٠٠ ٤٠ ٦

پورته شکل د ١٤٦ عدد راښيي په داسې حال کې چې ٦ دانې غنم د ٦ يويز، ٤ د غنمو ١٠ دانه يي وږي د ٤٠ عدد او د غنمو د لسو وږو يوه گېډۍ د ١٠٠ عدد راښيي چې په جدول کې په لاندې توگه ښودل کيږي.

| سليز | لسيز | يويز |
|---|---|---|
| ١ | ٤ | ٦ |



مشق او تمرين

۱. لاندې شکلونه په نظر کې ونيسئ. د هغو له مخې لاندې تش ځايونه ډک کړئ.





[ ] يو يز [ ] لسيز [ ] سليز، ټوله [ ] کيږي .
لاس ته راغلی عدد څو رقمي دی؟ دغه رقمونه د لاندې جدول په اړوندو مرتبو کې وليکئ.

| سليز | لسيز | يو يز |
|---|---|---|
| | | |

۲. لاندې شکلونه په نظر کې ونيسئ. د جدول تش ځايونه په مناسبو عددونو سره ډک کړئ.





۳ لسيز او ۲ سليز [ ] کيږي دا عدد په لاندې جدول کې وليکئ.

| سليز | لسيز | يو يز |
|---|---|---|
| | | |

**۳. د لاندې شکلونو له مخې تش ځايونه په خپلو کتابچو کې ډك کړئ.**






**[ ] يو يز [ ] لسيز [ ] سليز ټول [ ] کيږي دا عدد په لاندې جدول کې يې وښياست.**

| سليز | لسيز | يو يز |
|---|---|---|
| | | |




۱- د لاندې مثال سره سم تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

۸ یو یز ۹ لسیز ۳ سلیز ۳۹۸ کیږي

۶ یو یز ۵ لسیز ۹ سلیز ☐ کیږي.

۹ یو یز ۹ لسیز ۸ سلیز ☐ کیږي.

یو یز
لسیز
سلیز

۲- د لاندې مثال څخه په کاراخستنې سره تش ځایونه پـه خپلـو کتـابچو کې ډک کړئ .

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱-مثال: | ۷۸۲ = | ۲ | یو یز | ۸ | لسیز | ۷ | سلیز |
| ۲-مثال: | ۸۹ = | ۹ | یو یز | ۸ | لسیز | ۰ | سلیز |
| | ۷۰ = | | یو یز | | لسیز | | سلیز |
| | ۲۰۶ = | | یو یز | | لسیز | | سلیز |
| | ۷۶۰ = | | یو یز | | لسیز | | سلیز |
| | ۹۵۲ = | | یو یز | | لسیز | | سلیز |

یو یز
لسیز
سلیز

۳- لاندې هر یو عدد په خپلو کتابچو کې په رقمونو سره ولیکئ.

- دوه اویا
- پنځه سوه څلوراتیا
- دوه سوه پنځه دیرش
- شپږ پنځوس
- اووه سوه څلور څلویښت
- پنځه سوه دري

یو یز
لسیز
سلیز

۴- لاندې عددونه ولولئ او هر يو په خپلو کتابچو کې په تورو وليکئ.




۷۴۶ .....................................

۶۴۲ .....................................

۷۰۷ .....................................

۹۰۲ .....................................

۴۳۰ .....................................

۱۲۳ .....................................

۵- د ۴ او ۶ له عددونو څخه څو دوه رقمي عددونه ليکلای شئ؟

۶- د ۲۰۰ او ۲۵۰ عددونو په منځ کې ټول هغه عددونه چې د ۵ رقم ولري وليکئ.

۷- فهيم ۳۳ افغانی لري د ښـي لـوري د ۳ رقـم تـه او هـم د کـين لوري د ۳ رقم ته ځير شئ.

الف: وواياست چې دا دواړه رقمونه يو له بلـه سـره څـه توپير لري؟ .....................................................

ب: د ۳۳عدد ښي او کيڼ لوري رقمونه په عملـي توگـه د لرگوتو په واسطه وښياست؟

ج: د ۳۳ عدد رقمونه په چوت کې وښياست.



۸- لاندې عددونه په نظر کې ونیسئ.
الف ـ د ٦٦ په عدد کې څو یویز او څو لسیز موجود دي؟.............................................
ب- د اووه نوي په عدد کې څو یویز او څو لسیز موجود دي؟ ..................................................
ج ـ د دوه رقمي عددونو تر ټولو کوچني عدد کې څو یویز او څو لسیز موجود دي ؟ ...............................
د ـ د دوه رقمي تر ټولو لوی عدد کې څو یویز او څو لسیز موجود دي.

فعالیت

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو څخه درې تنه د ټولګي مخې ته ودروي. هریوه ته دې د ۱، ۲، ۳ یو یو کارت ورکړي او له هغو څخه دې وغواړي چې خپل اړوند کارت خپلو ټولګیوالو ته وښیي. بیا دې ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي. تاسو د کارتونو په واسطه کوم درې رقمي عدد لیکلای شئ. په دویم ځل دې د زده کوونکو ځایونه بدل کړي، لاس ته راغلی عدد دې په جدول کې ولیکي. په همدې ډول دې د ځایونو بدلولو ته ادامه ورکړي او د هر بدلون عدد دې تر هغه وخت پورې په جدول کې ولیکي چې لاس ته راغلی عدد تکرار رانشي. په پای کې دې وشمیري چې څو درې رقمي عددونه، د ۱، ۲، ۳ رقمونو څخه لاس ته راغلي دي
او هم د هغو تر ټولو کوچنیو او تر ټولو لویو عددونو نومونه واخلئ.

## فعالیت

۱- د مثال په توګه دواړه مساوي عددونه په خپلو کتابچو کې د غشي په واسطه يو له بله سره ونښلوئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۳يودانه‌يي او ۲ لسيز | ۴ يودانه‌يي او ۷ لسيز | ۲ يودانه‌يي او ۵ لسيز |
| ۱۴ يودانه‌يي او ۲ لسيز | ۱۲ يودانه‌يي او ۴ لسيز | ۳ يودانه‌يي او ۷ لسيز |

۲- د حل شوي مثال څخه په ګټې اخيستو سره د ښي لوري جدولونه د کيڼ لوري له عددونو څخه داسې بشپړ کړئ چې هر رقم يې په خپله مرتبه کې راشي.

مثال:

| يويز | لسيز | سليز | → | يويز | لسيز | سليز |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۲ | ۳ | | → | ۲ | ۴ | |
| ۳ | ۱۷ | | → | | | |
| ۱۳ | | ۲ | → | | | |

۳- د لاندې مثال په ډول د پوښتنو ځوابونه په خپلو کتابچو کې وليکئ.

مثال: د ۳۵ د عدد ارقام په کومو مرتبوکې قرار لري؟ (۵ د يويزو په مرتبه کې او ۳ د لسيزو په مرتبه کې).

- د ۷٦ د عــــدد ارقـــام پـــه کومـــو مرتبـــو کـــې قـــرار لري؟.........................او ............
- د ٦۴۵ د عدد ارقام په کومو مرتبو کې قرار لري؟

په خپله خوښه یو عدد ولیکـئ چـې پـه هغـه کـې یـو یز، لـسیز وجود ولري او وواياست چې دا عدد څو رقمي دی؟

- په شمیرلو کې له ۹ عدد څخه وروسته کوم عدد راځي؟
- په شمیرلو کې له ۹۹ عدد څخه وروسته کوم عدد راځي؟
- په شمیرلو کې له ۹۹۹ عدد څخه مخکې کوم عدد راځي؟
- د ۹۹۹ عدد څو رقمي دی؟




د ۴۰۰ او ۵۲۰ په منځ کې هغه عددونه ولیکئ چې د یو یز رقمونه یې ۵ وي؟

**هدف**: زده کوونکي د تخمين په مفهوم پوه شي او مقدار یې تخمين کړای شي.

مونږ ځنې وخت مقدارونه تخمينوو او بيا د شميرلو په واسطه يې دقيقه اندازه د یویزو او لسيزو په شکل ټاکو. ګورو چې زمونږ تخمين په کومه اندازه حقيقت ته نږدې دی. په حقيقت کې تخمين کول يو هوښيارانه سوچ يا حدس دی چې د ذهن د انکشاف لپاره مهم ګڼل کيږي. عموماً په کورنيو کې د کوچنيانو د ساعت تيرۍ لپاره ډېر ښه ده. مثلاً که چيرې په کورنۍ کې زردآلو وخوړل شي او د هغو مندکې (زړي) سره يو ځای کړي او خپلو کوچنيانو ته ووايې چې چا څو دانې خوړلي دي؟ چا زيات خوړلي دي؟ چا لږ خوړلي دي؟ هر يو د خپل فکر سره سم يو عدد وايې په پای کې دقيق شميرل کيږي. ليدل کيږي چې د کوم يوه تخمين حقيقت ته نږدې دی؟






ښاغلی ښوونکی دې یو نا معلوم مقدار د لوبیا دانې، یا د زرد آلو مندکې، د هندوانې یا خټکی او یا کدو زړي ټولګي ته راوړي او د ټولګي مخې ته دې کښېږدي، ټولو زده کوونکو ته دې وښيي. بیا دی هغه په یوه پاکټ یا کڅوړه کې واچوي. وروسته دې زده کوونکي په ډلو باندې وویشي او لارښوونه دې ورته وکړي.

۱. هرډله دې داسې جدول رسم کړي چې په هغه کې دوه ستونه د تخمین او دقیقو شمیرلو وي.

۲. د ډلې هریو تن دې د پاکټ یا کڅوړې د شي مقدار په اټکلی توګه وټاکي.

۳. دهر ډلې جدول دې د ټولګي مخې ته ځوړند شي.

۴. له هرې ډلې څخه دې یو، یو تن راشي د پاکټ یا کڅوړې د ننه توکي دې داسې وشمیري چې لومړی دې، لس، لس جلا کړي چې څو لسه او څو یو دانه یې دي.

۵. د شمیر حقیقي اندازه دې د ډلو د تخمین له جدول سره پرتله کړي.

۶. کومه ډله چې د مسابقې ګټونکې دی هغه ډله دې تشویق شي او خپل کار دې نورو زده کوونکو ته توضیح کړي.

# دویم فصل

## له (۱۰۰۰) څخه تر (۱۰۰۰۰) پورې د عددونو لوستل او لیکل

**دریم لوست: له ۱۰۰۰ څخه تر ۱۰۰۰۰ پورې د عددونو لوستل او لیکل**

هدف: زده کوونکي به وکړای شي چې عددونه له ۱۰۰۰ څخه تر ۱۰۰۰۰ پورې ولولي، ویې شمیري طبقې، او اړوند یې مرتبې یې وپېژني او بیایې ولیکې.

تا سو له ۱ څخه تر ۹۹۹ پورې ټول عددونه په دویم ټولګي کې پېژندلي او لوستلي دي چې ۹۹۹ درې مرتبې لري دا درې مرتبې لومړی مرتبه (دیویز و مرتبه) بلل کیږي. که چیرې په ۹۹۹ باندې د یوه عدد ور زیات کړو د ۱۰۰۰ عدد لاس ته راځي چې دا عدد څلور رقمونه لري چې څلورم رقم یې د (۱) عدد او په دویمې مرتبه پورې اړه لري، تا سو په لاندې جدول کې دوه مرتبه لیدلای شئ چې هره مرتبه یې د (یویز، لسیز او سلیز) درې مرتبې لري.

| دوهمه مرتبه ( زریزو مرتبه ) | | | لومړی مرتبه ( د یویزو مرتبه) | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| د سل زریزو مرتبه | د لس زریزو مرتبه | د زریزو مرتبه | د سلیزو مرتبه | د لسیزو مرتبه | د یویزو مرتبه | عدد |
| | | | | ۹ | ۹ | ۹۹ |
| | | | ۱ | ۰ | ۰ | ۱۰۰ |
| | | | ۹ | ۹ | ۹ | ۹۹۹ |
| | | ۱ | ۰ | ۰ | ۰ | ۱۰۰۰ |
| | | ۲ | ۰ | ۰ | ۰ | ۲۰۰۰ |
| | | . . . . | . . . . | . . . . | . . . . | . . . . |
| | | ۹ | ۰ | ۰ | ۰ | ۹۰۰۰ |

که چیرې اوس په دویمه مرتبه کې د یو زریزو مرتبې ته پاملرنه وکړئ، لیدل کیږي چې د (۱) عدد په همدې مرتبه کې دی او د لومړی مرتبه تولې مرتبې یې صفر دي، چې (۱۰۰۰)یو زر لوستل کیږي. که چیرې د (۱) د عدد په ځای د ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸ او ۹ عددونه وليکو د ۲۰۰۰، ۳۰۰۰، ۴۰۰۰، ۵۰۰۰، ۶۰۰۰، ۷۰۰۰، ۸۰۰۰ او ۹۰۰۰ عددونه حاصلیږي.

تاسو پوهیږئ چې د پورته عددونو صفرونه په لومړی طبقې پورې اړه لري، که چیرې د لومړی طبقې د صفرونو په ځای د ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸ او ۹ مختلف عددونه ولیکل شي په دې صورت کې د ۲۰۰۱، ۲۰۱۱، ۳۰۶۳، ۴۰۲۰، ۸۲۵۱، ۹۹۹۹ ... عددونه په لاس راځي.







لاندې کارتونو ته پاملرنه وکړئ:




د یویزو مرتبه    د لسیزو مرتبه    د سلیزو مرتبه    د یوزریزو مرتبه

الف: هغه عدد چې د پورتنیو ۴ کارتونو څخه په لاس راځي ولیکئ.

ب: نوموړی عدد څو رقمونه لري؟

ج: نوموړی عدد ولولئ او په تورو باندې یې ولیکئ.

د: د صفر کارت په کومه مرتبه کې موقعیت لري؟ د لوستلو په وخت کې تلفظ کیږي او که نه؟







۱- د ۱۲۷۴، ۳۰۰۲ او ۲۰۵۶ عددونه ولولئ او په تورو يې وليکئ د نومړو عددونو رقمونه په خپلو کتابچو کې د لاندې جدول په واسطه په اړوند مرتبو کې وليکئ.

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
|---|---|---|---|
| | | | |

۲- د يوزرو دوه، او وه زرو پنځه اتيا او نه زرو اته سوه درې ځلوېښت عددونه په رقم سره وليکئ او په جدول کې وښياست چې د هر يوه په مرتبه کې کوم رقم راغلی دی؟

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
|---|---|---|---|
| | | | |

۳- کله چې تا سو نهه زره درې وواياست په يوه جدول کې يې وښياست چې د ۹ رقم په کومه طبقه او مرتبه کې او همدارنګه د ۳ رقم په کومه طبقه او مرتبه کې ځای لري او هغه مرتبې چې نه لوستل کيږي کومې دي، په هغو کې کوم رقم قرار لري؟

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
|---|---|---|---|
| | | | |

۴- د پنځه زرو او وه عدد وليکئ. په جدول کې يې وښياست او رقمونه يې په اړوندو مرتبو کې وليکئ.

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
|---|---|---|---|
| | | | |




۱- هر زده کوونکی دې د مرتبو يو جدول رسم او د ۲۰۱۶،۲۰۰۷ او ۱۸۸۷ عددونو ارقام دې په اړوندو مرتبو کې وليکي.

۵- اته زره نهه سوه نهه ويشت په عددي بڼه او رقمونه يې په لاندې جدول کې په اړوندو مرتبو کې وليکئ.

| يويز | لسيز | سليز | زرريز |
|---|---|---|---|
| | | | |

۶- څلور زره يو سلو شپږ په ارقامو وليکئ او رقمونه يې په لاندې جدول کې په اړوندو مرتبو کې وليکئ.

| يويز | لسيز | سليز | زرريز |
|---|---|---|---|
| | | | |

۷- اته زره اووه سوه شپږ نوي په ارقامو وليکئ او رقمونه يې د جدول په اړوندو مرتبو کې وليکئ.

| يويز | لسيز | سليز | زرريز |
|---|---|---|---|
| | | | |

۸- نهه زره نوي د جدول په اړوندو مرتبو کې وليکئ.

| يويز | لسيز | سليز | زرريز |
|---|---|---|---|
| | | | |

۹- نهه زره نهه سوه نهه نوي د جدول په اړوندو مرتبو کې وليکئ او هم د ۸ او ۹ ګڼو پوښتنو د مرتبو په منځ کې توپير په خپلو کتابچو کې وليکئ.

| يويز | لسيز | سليز | زرريز |
|---|---|---|---|
| | | | |




څرنګه چې د ۹۹ په عدد باندې د (۱) عدد ورزيات شي، د ۱۰۰ عدد په لاس راغلی. که چيرې د ۹۹۹ په عدد باندې د (۱) عدد زيات شي، کوم عدد لاس ته راځي او څو رقمي دی؟ د جدول په اړوند مرتبو کې وليکئ.

# څلورم لوست

## له ۱۰۰۰۰ څخه تر ۱۰۰۰۰۰ پورې د عددونو پیژندنه

**هدف**: زده کوونکي به وکړای شي چې تر ۱۰۰۰۰۰ پورې عددونه ولولي او د طبقو په اړوندو مرتبو کې یې ولیکي.

تا سو د ۹۹۹۹ عدد پیژندلی دی. که چېرې اوس په دې عدد باندې د (۱) عدد زیات کړو، د ۱۰۰۰۰ په لاس راځي چې دا عدد یو پنځه رقمي عدد دی او نو موړی عدد د (۱)رقم د دویمې طبقې د لس زریزو په مرتبه کې قرار لري. که چېرې اوس د لس زریزو په مرتبه کې د (۱) د عدد په ځای د ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸ او ۹ عددونه ولیکو د ۲۰۰۰۰، ۳۰۰۰۰، ۴۰۰۰۰، ۰۰۰، ۹۰۰۰۰ عددونه په لاس راځي.

| دویمه طبقه (د زریزو طبقه) | | | لومړی طبقه (دیویزو طبقه) | | |
|---|---|---|---|---|---|
| د سل زریزو مرتبه | د لس زریزو مرتبه | د زریزو مرتبه | د سلیزو مرتبه | د لسیزو مرتبه | د یویزو مرتبه |
| | | | | ۹ | ۹ |
| | | | ۱ | ۰ | ۰ |
| | | | ۹ | ۹ | ۹ |
| | | ۱ | ۰ | ۰ | ۰ |
| | | ۹ | ۹ | ۹ | ۹ |
| | ۱ | ۰ | ۰ | ۰ | ۰ |
| | ۹ | ۹ | ۹ | ۹ | ۹ |
| ۱ | ۰ | ۰ | ۰ | ۰ | ۰ |

او س که چېرې د ۹۰۰۰۰ د لومړۍ طبقې د یویزو په مرتبه کې د ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸ او ۹ عددونه ولیکو، د ۹۰۰۰۱، ۹۰۰۰۲، ۹۰۰۰۳، ۰۰۰، ۹۰۰۰۹ عددونه په لاس راځي. همدارنګه که چېرې د ۹۰۰۰۹ عدد د لسیزو، سلیزو او زریزو په مرتبو کې د ۱، ۲، ۳، ۰۰۰۰۰۰، ۹، رقمونه ولیکو د ۹۰۷۶۸، ۹۶۰۲۵، ۹۷۵۴۲، ....۹۹۹۹۹ عدد په لاس راځي. که چېرې د ۹۹۹۹۹ په عدد باندې د (۱) عدد ورزیات شي، د ۱۰۰۰۰۰ عدد په لاس راځي تاسو کولای شئ، ځنې عددونه د لاندې جدول په اړوندو طبقو او مرتبو کې وګورئ.

مشق او تمرین

لاندې تش ځایونه په مناسبو رقمونو سره د حل شوي مثال په ډول په خپلو کتابچو کې ډك کړئ.

مثال: شپږ او یا زره دوه سوه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۷ | ۲ | ۲ | ۰ | ۰ |

پوښتنې:

۱) شل زره
۲) اوولس زره شپږ سوه پنځه څلوېښت
۳) دوه دېرش زره
۴) اته ویشت زره پنځه دېرش

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | ۰ | ۰ | ۰ | ۰ |
| ۱ | | ۲ | | ۵ |
| ۳ | ۲ | | | |
| ۲ | | | | ۵ |

لاندې عددونه لکه حل شوی مثال په حروفو باندې ولیکئ.

مثال: ۳۸۹۳۰ – اته دېرش زره نهه سوه دېرش

۱- ٦۵۰۰۴ ..............................
۲- ۷۳٦۴۲ ..............................
۳- ۱۰۰۰۰۰ ............................
۴- ۸۷۰۰۷ .............................
۵- ۹۹۹۹۹ ............................

کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د طبقو او مرتبو جدول په خپلو کتابچو کې رسم کړي، بیا دې لاندې عددونه د جدول په اړوندو مرتبو کې ولیکي او په تورو دې ولیکی.

۳۴۰۰۳، ۱۰۰۰۰۰، ۹۵۹۹۹




۱- څو داسې عددونه ولیکئ چې د سلیزو په مرتبه کې یې۹ او د لسیزو په مرتبه کې یې ۳ یې وي.

۲- یو داسې عدد ولیکئ چې د سلیزو په مرتبه کې یې ۴ او د زریزو په مرتبه کې یې ۲ راغلي وي.

۳- یو داسې عدد ولیکئ چې د یویزو په مرتبه کې یې ۴ او د لس زریزو په مرتبه کې یې ۷ راغلي وي.

۴- داسې یو عدد ولیکئ چې د لس زریزو په مرتبه کې یې ۴ او د سلیزو په مرتبه کې یې ٦ راغلي وي.

۵- داسې یو عدد ولیکئ چې د لس زریزو په مرتبه کې یې ۹ او وواياست چې دا عدد څو رقمونه لري؟

۶- که چیرې د سلو زرو په مرتبه کې د (۱) رقم قرار ولري، د لومړۍ او دویمې طبقې په نورو مرتبو کې یې صفر لیکل شوی وي، کوم عدد لاس ته راځي؟




په خپلو کتابچو کې د طبقو یو جدول رسم او د ۱٦۰۷۰۴ عدد د لاندې جدول په اړوندو مرتبو کې ولیکئ.

| سل زریز | لس زریز | زریز | سلیز | لسیز | یویز |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | |

# دریم فصل
# جمع

**پنځم لوست: د جمعې په عملیې کې د لس دا نه ییزو ډلو جوړول**

**هدف: زده کوونکي به وکړای شي چې د جمعې عملیه د لس دانه‌ییزو ډلو په جوړولو سره سرته ورسوي.**

۱ـ مثال: لاندې شکلونو او د هغوی اړوندو عملیوته پاملرنه وکړئ.




۲ـ مثال




**فعالیت**

حل شوي مثال په نظر کې ونیسئ او تش ځایونه یې ډک کړئ.



☐+☐=☐+☐=☐




۱- مثال ته په کتو سره د جمعې په عملیې کې لاندې تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

۲ + ۷ = ۱۰ + ۳ = ۱۳

۵ + ۲ = ۱۰ + [ ] = [ ] ، ۷ + ۹ = ۱۰ + [ ] = [ ]

۹ + ۲ = ۱۰ + [ ] = [ ] ، ۸ + ۷ = ۱۰ + [ ] = [ ]

۸ + ۹ = ۱۰ + [ ] = [ ]

---

۲- د لاندې مثال په ډول د لس جمع یو عدد په جوړولو سره لاندې تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

۸ + ۲ = ۱۰ + ۴ = ۱۴

۹ + ۴ = [ ] + [ ] = ۱۳ ، ۷ + ۸ = [ ] + [ ] = ۱۵

۳ + ۹ = [ ] + [ ] = ۱۲ ، ۹ + ۷ = [ ] + [ ] = ۱۲

۷ + ۲ = [ ] + [ ] = ۱۳

۳- د جمعې په عملیه کې لاندې تش ځایونه ډک کړئ.

۶ + ۸ = [ ] + ۴ = [ ]

۳ + ۷ = ۱۰ + [ ] = [ ]

۴ + ۶ = [ ] + ۰ = [ ]




څو داسې عددونه پیدا کولای شئ چې د ۴ سره جمع شي او د جمعې حاصل یې ۱۰ شي.

# شپږم لوست

## د څو رقمي عددونو جمع چې د جمعې حاصل يې له ۱۰۰۰۰۰ زيات نشي

هدف: زده کوونکي به وکړای شي چې د څو رقمي عددونو د جمعې حاصل په لاس راوړي.
زده کوونکی به دې وپوهيږي چې په هره مرتبه کی يوازې يو رقم ليکلای شو.

**پاملرنه وکړئ:** تاسو په دوهم ټولګي کې د حاصل لرونکو عددونو جمع په کوچنيو عددونو کې ولوستل او زده مو کړل، د جمعې دا عمليه په لويو عددونو کې داسې په نظر کې ونيسئ.

| زريز | سليز | لسيز | يويز |
|---|---|---|---|
| ① | ① | ① | |
| ۲ | ۵ | ۳ | ۴ |
| + ۶ | ۷ | ۶ | ۷ |
| ۹ | ①۳ | ①۰ | ①۱ |

مثال:

```
 ① ①  ①
 ۲ ۵ ۳ ۴
+ ۶ ۷ ۶ ۷
―――――――
 ۹ ۳ ۰ ۱
```

### فعاليت

مخامخ پوښتنې حل کړئ:

```
  ۶۴۳۵        ۵۸۴۳        ۷۳۲۱
+ ۱۵۸۶      + ۶۰۸۰      + ۲۶۰۹
――――――      ――――――      ――――――
```




لاندې پوښتنې حل کړئ:

```
  ۲۷۰۳        ۱۰۸۷        ۳۴۰۵۶
+ ۹۶۱۹      +  ۹۹۴      + ۶۴۹۶۷
――――――      ――――――      ―――――――
```




۱- د حاصل څخه په کار اخستنې سره لاندې د جمعې پوښتنې حل کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۴۴۳ | ۱۰۰۴۷ | ۳۴۵٦ |
| + ۱۸۵۸ | + ۹۹۹۳ | + ۴۰۹۰۷ |





۲- لاندې پوښتنې خپلو کتابچو کې ولیکئ او په تشو ځایونو کې یې مناسب عددونه ولیکئ.

| | | |
|---|---|---|
| □ □ □ | (۱) (۱)<br>□ ۷ ۳ | (۱)<br>۸ ۸ ٦ |
| + ۴ ۷ ۸ | + ۳ ۴ □ | + □ ۰ □ |
| ۴ ۷ ۸ | ۵ ۲ ۲ | ۱۳ ۹ ۴ |

| | | |
|---|---|---|
| (۱) (۱)<br>٦ ۷ ۸ | (۱)<br>۸ ۷ ٦ | (۱)<br>۷□ □ ٦ |
| + ۳ ۲ □ | + □ □ □ | + ۴ ۳ □ |
| ۱۰ ۰ ۱ | ۱۱ ۰ ۹ | ۷ ۷ ۹ ۰ |

۳- احمد ۲۸ افغانۍ لري، پلار یې د سودا اخیستلو لپاره ۷۰٦ افغانۍ نورې هم ورکړې اوس له احمد سره څو افغانۍ دي؟

۴- په یوه بڼ کې د بادامو ۱۸۰۰ نیالګي او د زردالو ۵۵۰ نیالګي موجود دي، معلوم کړئ چې د بڼ ټول نیالګي څومره دي؟

۵- کریمه له ذبیح څخه ۱۸۰ افغانۍ زیاتې لري. که چیرې ذبیح ۳۸۰ افغانۍ ولري، د کریمې پیسې معلومې کړئ.




د اختر په ورځ پلار خپل زوی کریم ته ۵ افغانۍ او نورو ۴ زامنو ته یې ۵، ۵ افغانۍ ورکړې، معلوم یې کړئ چې پلار یې زامنو ته څو افغانۍ ورکړې دي؟



# اووم لوست

## د هغو عددونو جمع چې له دوو جزو څخه زياتې اجزاوې ولري

هدف: زده کوونکي به وکړای شي چې د جمعې عمليه چې له دوو جزو څخه زياتې اجزاوې ولري سرته ورسوي.

**مثالونه:**

| | |
|---|---|
| د جمعې لومړی جز | ۲۵ |
| د جمعې دويم جز | ۱۴ |
| د جمعې دريم جز | + ۱۰ |
| د جمعې حاصل | ۴۷ |

| | |
|---|---|
| | ۱ ۱ |
| | ۱۷۶ |
| | ۳۰۰ |
| | ۵۳۰ |
| + | ۶۴ |
| | ۹۶۰ |

| | |
|---|---|
| | ۱ ۱ |
| | ۱۴۸ |
| | ۳۶۵ |
| + | ۱۰۰ |
| | ۵۱۳ |

**فعاليتونه**

۱- جمع يې کړئ.

الف:

| | |
|---|---|
| | ۳۴۷ |
| | ۱۰۰ |
| | ۱۲۳ |
| + | ۱۴۷ |
| | |

ب:

| | |
|---|---|
| | ۱۰۱ |
| | ۲۳۴ |
| | ۵۶ |
| + | ۱۲ |
| | |

ج:

| | |
|---|---|
| | ۳۴۷ |
| | ۱۱۲ |
| + | ۶۲۳ |
| | |

۲- څو داسې عددونه وليکئ چې د جمعې حاصل يې ۹ شي، په داسې حال کې چې اجزاوې يې تکرار نشي.

۳- څو داسې عددونه وليکئ چې د جمعې حاصل يې ۱۲ او مساوي اجزاوې ولري.

کورنۍ دنده

جمع يې کړئ:

| | |
|---|---|
| | ۷۰۰۲ |
| | ۱۸۷۰ |
| | ۹۴۰۲ |
| + | ۸ |
| | |

| | |
|---|---|
| | ۳۵ |
| | ۷۴۳ |
| | ۳۷۱ |
| + | ۱۰۰ |
| | |




۱- یوه بښوال د ۳٦۲۰۰ افغانیو منې د ۱۲۰۰۰ افغانیو ناك او د ٦۱۰۰ افغانیو شفتالو وپلورل. معلوم کړئ چې نوموړي بښوال ټولې څو افغانۍ لاس ته راوړې دي؟

۲- یوه هټۍ وال په لومړۍ ورځ د ۱۲۰۰ افغانیو، په دوهمه ورځ د ۱۲۰ افغانیو، په دریمه ورځ د ۱۸۰۰ افغانیو او په څلورمه ورځ د ۲۰۲۰۰ افغانیو اجناس پلورلي دي، معلوم کړئ چې هټۍوال په څلورو ورځو کې ټولې څو افغانۍ لاس ته راوړې دي؟

۳- لاندې پوښتنې لومړۍ په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا یې تش ځایونه په مناسبو عددونو سره ډك کړئ.

(۱) (۱) (۱) (۱)
□ ۳ □ ۷ ۳
+ ٦ □ ٤ ۳ ۸
۷ ۱ ۱ ۱ ۱

(۱) (۱) (۱) (۱)
□ ۹ □ ۵ ۵
+ ۷ ۰ ۹ □ ۵
۱۰ ۰ ۰ ۰ □

( ) ( ) ( )
۷ ۸ ۸ ٤ ۲
+ ۹ ۸ ۸ ۷
□ □ □ □ □

(۱) (۱) (۱)
۱ ۰ ٦ □ ۸
+ □ □ □ ۷ □
۱ ۲ ۳ ۵ ٦

کورنۍ دنده

د ټوکر اوبدلو یوې فابریکې په لومړۍ ورځ ۴۳۰ متره ټوکر، په دویمه ورځ ۷٤۰ متره ټوکر او په دریمه ورځ ۱۰۲۰ متره ټوکر تولید کړی دی. معلوم یې کړئ چې په درې واړو ورځو کې نوموړې فابریکې څو متره ټوکر او بدلي دي.

# اتم لوست

## د جمعې د عملیې ازموینت

هدف: زده کوونکي به وکولای شي چې د جمعې عملیې امتحان کړي.



| |
|---|
| ۳۲۲ |
| +۱۰۷۶ |
| ۱۳۹۸؟ |



| |
|---|
| ۳ ۲ ۲ |
| + ۱ ۰ ۷ ٦ |
| ۱ ۳ ۹ ۸ |

شاکر، فهیم ته وویل: کولای شې چې د ۳۲۲ عدد د ۱۰۷۶ له عدد سره جمع کړې؟

فهیم وویل هو، داسې یې جمع کوم:

شاکر وویل: څرنګه پوهیږې چې پوښتنه دې صحیح حل کړې ده او که غلطه؟

| |
|---|
| ۱ ۰ ۷ ٦ |
| + ۳ ۲ ۲ |
| ۱ ۳ ۹ ۸ |

فهیم وویل: ددې کار لپاره د جمعې د اجزاوو ځایونه بدلوو او د جمعې عملیه سرته رسوو.

څرنګه چې په دواړو حالتونو کې عین عدد لاس ته راغلی نو ځواب صحیح دی.




لاندې پوښتنې لومړی په کتابچو کې جمع او بیا یې وآزمایئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۲۳۴۵ | ۱۰۸٦۰ | ۲۹۷٦۴ |
| + ۱۰۲۳ | + ۲۸۰۱۵ | + ۵۰۲۳۵ |
| | | |






۱. لاندې عددونه لومړی جمع او بیا یې امتحان کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۳۷۶۴ | ۷۶۵۰ | ۱۷۸۹۱ |
| + ۱۵۳۲۱ | + ۶۳۴۲۵ | + ۷۱۸۶۴ |

۲. د ۷۲۰۳۵ او ۶۰۱۰ عددونه یو له بله سره جمع او امتحان کړئ.

۳. د ۹۰۹۹ او ۹۹۹۹ عددونه یو له بل سره جمع او امتحان یې کړئ.

۴. په یوه بڼ کې ۸۰۰۰۰ د منیو نیالګي وه، په نوموړي بڼ کې ۱۶۷۴۵ نور نیالګي یې کینول شول اوس په بڼ کې څو نیالګي موجود دي. په دوه ډوله یې ځواب په لاس راوړئ.




لاندې پوښتنې لومړی په خپلو کتابچو کې حل او بیایې وآزمایئ.

| | |
|---|---|
| ۱۶۴۲ | ۷۰۰۴۲ |
| + ۸۶۰۷ | + ۲۰۸۰۰ |

# خلورم فصل

# د تفريق عمليه

## نهم لوست: له يو بل څخه د دوه رقمي، درې رقمي او څلور رقمي عددونو تفريق

هدف: زده کوونکي به وکړای شي چې په دوه رقمي، درې رقمي او څلور رقمي عددونو کې د تفريق عمليه سرته ورسوي.

**پاملرنه وکړئ:**

**حميده ۹۴ افغانۍ لري په ۴۲ افغانيو يې قلم او کتابچه واخيستل اوس د حميده سره څو افغانۍ پاتې دي؟**

**۹۴-۴۲=۵۲**

**يا :**

| | |
|---|---|
| ۹۴ | مفروق منه |
| ۴۲ – | مفروق |
| ۵۲ | د تفريق حاصل |

**محسن ۱۳۸ کريته منې لري، که چيرې د هغو څخه ۲۸ کريته منې خرڅې کړي، څو کرېته منې به له هغه سره پاتې شي؟**

| |
|---|
| ۱۳۸ |
| ۲۸ – |
| ۱۱۰ |

**يوه هټۍوال ۳۹۸۰ متره ټوکر درلود، که چېرې له هغو څخه يې ۷۸۰ متره ټوکر پلورلی وي څو متره ټوکر نور ورسره پاتې دی؟**

| |
|---|
| ۳۹۸۰ |
| ۷۸۰ – |
| ۳۲۰۰ |




**يوه عبارتي پوښتنه ترتيب او حل کړي.**



مشق او تمرين

۱- لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۹۹۹۹ | ٦٨٩٢٧ | ٦٧۴٢ |
| ـ ٦٩٩٩ | ـ ۵٦٧٠٦ | ـ ۱۰٣٠ |

۲- لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۹۹۵۲ | ۱۹۹۵۲ | ۱۷۷٦۵ |
| ـ ۲٦۴۲ | ـ ۱۷٣۱۰ | ـ ۲٦۴۲ |

۱- د اووه اويا زره له عدد څخه د اووه زره عدد تفريق کړئ.

کورنی دنده

لاندې د تفريق عمليې په خپلو کتابچو کې سرته ورسوئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۸۹۷۹ | ۱۸۹۷۹ | ۱۷۹۷۸ |
| ـ ۱۷۱٣۲ | ـ ۱۸۴۷ | ـ ۱۸۴۷ |

# لسم لوست

## د پور اخيستلو په صورت کې د تفريق د عمليې سرته رسول

هدف: که چيرې د مفروق منه د کومې مرتبې رقم د مفروق د هم هغې مرتبې څخه کوچنی وي زده کوونکي د وروستي رقم څخه په پور اخيستلو سره د تفريق عمليه سرته رسولای شي.

څرنګه چې د عددونو په جمع کولو کې مو يو لسي د يويزو له مرتبې څخه لسيزو ته او يو سلي د لسيزو له مرتبې څخه د سليزو مرتبې ته انتقال کړل، د عددونو په تفريق کې کولای شئ د لسيزو له مرتبې څخه يولسي د يويزو مرتبې ته او يا د سليزو له مرتبې څخه لسيزو ته او يا د زريزو له مرتبې څخه د سليزو مرتبې ته انتقال کړئ او د تفريق د عمليې په حل کې له هغه څخه کار واخلئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| | ۲ | ۱۴ | ۱۲ |
| | ۳ | ۵ | ۲ |
| − | ۱ | ۷ | ۵ |
| | ۱ | ۷ | ۷ |

**فعاليت**:

لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | ۳ | ۰ | ۰ | ۰ | ۶ |
| − | ۱ | ۱ | ۲ | ۴ | ۸ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | ۷ | ۳ | ۵ | ۸ |
| − | ۶ | ۳ | ۵ | ۹ |




| | |
|---|---|
| | |
| − | ۹۹۹۱ |

د جمعې او تفریق تمرینونه:

۱- په چوکاټ کې دوه عددونه یو له بل سره جمع کړئ

| | |
|---|---|
| ۶۰۷ او ۵۸۳ | ۸۴۰ او ۷۰۳ |
| ۲۵۶۴ او ۸۴ | ۱۰۴ او ۱۱۱ |
| ۳۷۲ او ۶۴۱ | ۱۰۰ او ۲۱۳ |

۲- په چو کاټ کې دوه عددونه په نظر کې ونیسئ، د لوی عدد څخه کوچنی عدد تفریق کړئ.

| | |
|---|---|
| ۱۰۰۰ او ۹۷۸ | ۴۸۱ او ۱۷۳۲ |
| ۱۹۲ او ۶۴۰ | ۳۲۵ او ۷۸۶ |
| ۱۷۶ او ۸۷ | ۳۰۰۵ او ۱۰۹ |

۳- ۱۸۰ کسانو چې سرې او شنې جامې یې اغوستې وې، د ځغاستې په یوې لوبې کې یې ګډون وکړ، که چېرې ۹۲ تنو یې سرې جامې اغوستې وي څو تنو یې شنې جامې اغوستې دي؟

کورنۍ دنده

په یوه لومړني ښوونځي کې ۴۸۲ زده کوونکي دي، که چېرې ۱۷۴ یې نجونې وي د هلکانو شمېر معلوم کړئ.

۴- په یوه الوتکه کې ۳۵۰ تنه مسافر دي، ۲۳۰ تنه یې په یوه هوائي ډګر کې کوز شول او ۱۲۰ تنه نور نوموړې الوتکې ته وختل. اوس د مسافرینو شمېر څو تنه دی؟

۵- په یوه کارتن کې ۱۰۰ دانه ییز دوه قطیه قلمونه و، که چېرې ۶۸ داني قلمونه زده کوونکو ته ویشل شوي وي، نور څو داني قلمونه پاتې دي؟

٦- که چېرې د درېیم (الف) په ټولګي کې ۳۷ زده کوونکي او د درېیم (ب) په ټولګی کې ۴۳ زده کوونکي شامل وي ، په داسې حال کې که په دواړو ټولګیو کې ۲۰ نجونې وي، په دواړو ټولګیو کې د هلکانو شمېر معلوم کړئ؟

۷- د چرګانو په دوو فارمونو کې ۶۰۰ چرګان دي، که چېرې په یوه فارم کې ۲۷۹ چرګان وي د بل فارم د چرګانو شمېر معلوم کړئ.

۸- د چرګانو په یوه فارم کې ۲۰۵ چرګې او په بل کې ۳۱۱ چرګې دي، په دواړو فارمونو کې د روغو چرګو شمېر معلوم کړئ، په داسې حال کې چې د ناروغو چرګو شمېر ۲۱ دی ؟

کورنۍ دنده

د تفریق یوه عبارتي پوښتنه ولیکئ او حل یې کړئ.

۹- لومړی یې جمع کړئ بیا له لاسته راغلی د جمعې حاصل څخه هر یو د جمعې جز تفریق کړئ.

| | |
|---|---|
| | ۱ ۴ ۲ ۱ |
| + | ۲ ۱ ۸ |
| | |

۱۰- احمد یو خوراك، محمود دوه خوراکه او سلیم دري خوراکه کباب وخوړ او د هوټل خاوند ته یې ۵۰۰ افغانۍ ورکړې، که چېرې د یو خوراك کباب قیمت ۵۰ افغانۍ وي معلوم کړئ چې هوټلي څو افغانۍ بیرته ورکړي؟

۱۱- کریم ۹۸۰ افغانۍ درلودې خپلو درېوو زامنو هر یوه ته یې ۹۹ افغانۍ د ښوونځي د اړتیا شیانو لپاره ورکړې، معلوم کړئ چې د کریم سره څو افغانۍ پاتې دي؟

۱۲- د ؟= ۶۴ - ۱۲۵ د تفریق عملیه په نظر کې ونیسئ او حل یې کړئ، بیا داسې عبارت ورته ولیکئ چې د عملیې مفهوم وښیي.




زده کوونکي دې لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې حل کړي.

۱-

| | |
|---|---|
| | ۱ ۰ ۹ |
| | ٦۱۳ |
| + | ۷ ۸ |
| | |

۲-

| | |
|---|---|
| | ۴ ۰ ۳ ۹ |
| | ۷ ۰ ۴ ۷ |
| + | ۲ ۰ |
| | |

۳-

| | |
|---|---|
| | ۸ ۱ ۱ ۰ |
| _ | ٦ ۱ ۸ |
| | |

۱۳- د (۷۸۶۴۲) او (۱۹۸۷۶) عددونو څخه کوم یو یې لوی او کوم یې کوچنی دی؟ له لوی عدد څخه کوچنی عدد تفریق کړئ.

۱۴- د لاندې پوښتنو تش ځایونه د >، = او < په مناسبو نښو سره ډك کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۷٦۴۲ | ☐ | ۲۳۴۵۱ |
| ۴۳۲۱٦+۳۰۴ | ☐ | ۴۳۵۲۰ |
| ۴۳۵۲۰-۳۰۴ | ☐ | ۴۳۲۱٦ |
| ۸۷۹۸٦ | ☐ | ۷۸۴۳۰ |

کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | |
|---|---|
| ۷۶۴۲۱ | ۱۸۰۴۲ |
| − ۶۷۸۴۰ | − ۸۷۲۴ |
| ☐ | ☐ |

| | |
|---|---|
| ۱۰۰۰۰۰ | ۱۰۰۷۶ |
| − ۹۲۴۶۸ | − ۹۳۲۷ |
| ☐ | ☐ |

# يوولسم لوست



## د تفريق د عمليې ازمايل



هدف: زده کوونکي په دې پوه شي چې د تفريق پوښتنه يې په سمه توګه حل کـــړې ده او که نه

**د دې لپاره چې باوري شو د تفريق پوښتنه مو په سمه توګه حل کړې ده او که نه؟ هغه په لاندې توګه آزمويو:**

| | آزموينه | | |
|---|---|---|---|
| د تفريق حاصل | ۴ | ۱ | ۲ |
| مفروق + | ۴ | ۲ | ۲ |
| مفروق منه | ۸ | ۳ | ۴ |

| | مثال | | |
|---|---|---|---|
| مفروق منه | ۸ | ۳ | ۴ |
| مفروق − | ۴ | ۲ | ۲ |
| د تفريق حاصل | ۴ | ۱ | ۲ |

**د تفريق د عمليې د ازمايلو لپاره لومړی د تفريق حاصل له مفروق سره جمع کوو، که چېرې مفروق منه لاس ته راشي پوښتنه سمه ده او له هغه پرته غلطه ده.**

## فعاليت

**- د پورته حل شوي مثال په توګه لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل او وآزمايئ.**

| | |
|---|---|
| ۸۴۴۷ | ۷۶۲۹ |
| _۶۲۴۵ | _۴۵۵۲ |




کورنی دنده

**هر زده کوونکی دې په خپله يوه پوښتنه وليکي او حل**



دې کړي بيا دې وآزمويي.




۱- لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل او امتحان کړئ.

الف:

$$\begin{array}{r} ۶۴۲۰ \\ -\ ۱۸۴۰ \\ \hline \end{array}$$

ب:

$$\begin{array}{r} ۷۳۲۵ \\ -\ ۱۹۷۶ \\ \hline \end{array}$$

ج:

$$\begin{array}{r} ۱۰۰۰۰۰ \\ -\ ۹۹۹۹۹ \\ \hline \end{array}$$

۲- يوه بنوال ۱۰۸۰ نيالګي وپلورل، ۲۱۰ نيالګي له هغه سره پاتې شول، معلوم کړئ چې نوموړي بنوال ټول څو نيالګي درلودل؟

۳- يوه مال دار ۱۲۰۰۰ ميږې درلودې، نوموړي ۹۰۴ ميږې وپلورلې، معلوم کړئ چې څو ميږې ورسره پاتې دي؟

۴- يوه دکان دار په څلورو ورځو کې د ۸۷۶۰۲ افغانيو توکر پلورلی دی، که چېرې په لومړۍ ورځ يې د ۱۰۸۰۰ افغانيو، په دويمه ورځ يې د ۱۶۰۷۰ افغانيو او په دريمه ورځ يې د ۳۸۰۰۰ افغانيو توکر پلورلي وي، د هغه د څلورمې ورځې پلورنه معلومه کړئ؟

۵- يو تن مامور په مياشت کې ۳۴۰۰ افغانۍ معاش اخلي، که چېرې په ۹۰۰ افغانۍ اوړه واخلي، ۲۰۰۰ افغانۍ د کور کرايه ورکړي، څو افغانۍ له هغه سره پاتې کيږي؟




يوه بزګر په يو کال کې ۵۰۰ منه د غنمو حاصل، ۲۰۰ منه يې د خپل خوراك لپاره وساتل، پاتې څومره غنم بايد وپلوري تر څو خپلې نورې اړتياوې بشپړې کړي؟

# پنځم فصل

# د عددونو خط



## دولسم لوست: د عددونو خط



هدف: زده کوونکي به د عددونو خط وپيژني او په ترتيب سره به عددونه په هغه باندې وليکلای شي.

**فعاليت**

**١ـ** د عددي کارتونو د شکلونو څخه په ګټې اخيستنې سره د لاندې جدول تش ځايونه ډک کړئ.



| | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ١ | | ٣ | | | ۶ | | | | ١٠ | | ١٢ | | | ١۵ | | | ١٨ | | |

**٢ـ** د پورته ډک شوي جدول څخه په ګټه اخستنې سره د لاندې خط په هغو ټکو باندې چې عدد ليکل شوی نه دی، په ترتيب سره په خپلو کتابچو کې د هغو اړوند عدد وليکئ.




پاملرنه:

الف: صفر د پيل په نقطه کې قرار لري.

ب: د صفر نقطه د عددي خط د پيل (مبدأ) په نامه ياديږي.

ج: دا ډول خط د عددونو د خط په نامه ياديږي.

د: د ۵، ۶، ٧، ١، ۴ ، ٢ ، ٣عددونه داسې ترتيب کوو.

٢ ،١ ،٧ ،۶ ،۵ ،۴ ،٣

**مشق او تمرين**

۱- د عددونو يو خط په خپلو کتابچو کې رسم کړئ، د هغه په مخ باندې لس نقطې په مساوي فاصلو سره جلا کړئ، په ترتيب سره عددونه له کينې لورې څخه ښي لورې ته وليکئ.

۲- يو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته په قدم وهلو پيل وکړي، نور زده کوونکي دې د هغه قدمونه حساب کړي او د عددونو د خط په مخ باندې دې وښيي.

۳- د ۳، ۵، ۲، ۷، ۶او ۴ عددونه په ترتيب سره د عددي خط په مخ وليکئ.

۴- د ۹ ، ۳، ۶، ۲، ۵، ۷، ۱۰، ۸، ۱ او ۴ عددونه په ترتيب سره د کوچنيو عددونو، څخه د لويو عددونو خواته وليکئ.

۵- د لاندې عددونو عددي خط نقطې په نظر کې ونيسئ، عددونه په ترتيب سره د کينې لورې څخه ښي لورې ته وليکئ.



**کورنۍ دنده**

د عددونو خط په خپلو کتابچو کې رسم کړئ، د ۸، ۶، ۷، ۵، ۴، ۲، ۱ او ۳ عددونه په ترتيب سره د عددونو په خط باندې وليکئ.






هدف: زده کوونکي به لسونو ته نژدې عددونه یعنې(۱۰ ، ۲۰ ، ۳۰، ۴۰، .... ته نژدی عددونه) تشخیص کړای شي.

مثال: د ۲۲ عدد د عددونو په خط باندې په لاندې توګه ښودل شوی دی، د ۲۲ عدد کوم یوه لسونو ته نژدې دی؟یعنې۲۰ ته او که ۳۰ ته نژدې دی؟




د خط په مخ باندې لیدل کیږي چې د ۲۲ عدد د ۲۰ او ۳۰ عددونو په منځ کې قرار لري، څرنګه چې ۲۲ له ۲۰ څخه د ۲ واحدونو په اندازه او له ۳۰ څخه د ۸ واحدونو په اندازه فاصله لري، نو ۲۲ د د ۳۰ عدد په نسبت د۲۰ عدد ته نژدې دی، نوموږ ۲۲ د ۲۰ په نژدې والی کې حساب وو.

**فعالیت**: آیا د۲۵ عدد ۲۰ ته نژدې دی او که ۳۰ ته؟




۲۵ د ۲۰ او ۳۰ په منځ کې پروت دی، کله چې داسې پیښه شي، موږ وایو دواړو ته یو شان فاصله لري.




۱- هغه عددونه چې د ۱۰ او ۲۰ په منځ کې قرار لري کوم یې ۱۰ ته او کوم یې ۲۰ ته نژدې دی؟ جلا جلا یې ولیکئ او کوم عدد د۱۰ او ۲۰ په منځ کې پروت دی.

۲- هغه عددونه چې د ۳۰ او ۴۰ په منځ کې پراته دي کوم عددونه چې ۴۰ ته نژدې دي؟ ویې لیکئ!




د ۹۳ ، ۹۸، ۹۷، ۹۵ او ۹۱ په عددونو کې کوم عددونه ۹۰ او کوم عددونه۱۰۰ ته نژدې دي جلا، جلا یې ولیکئ.



مشق او تمرين

۱- د عددونو خط ته په پاملرنې سره د حل شوي مثال په توګه لاندې عددونه کوم عددونه ٦٠ او کوم عددونه ٧٠ ته نژدې دي.

مثالونه:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ٦١ | ٦٠ | ٦٧ | | ٦۴ | |
| ٦٩ | ٧٠ | ٦٣ | | ٦٦ | |




۲- د لاندې عددونو خط په نظر کې ونیسئ، کوم عددونه ۴۰ ته او کوم عددونه ۵۰ ته نژدې دی؟




| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۴۴ | | ۴۸ | | ۴٦ | |
| ۴۵ | | ۴۲ | | ۴۴ | |

۳- هغه عددونه چې ۷۰ ته نژدې دي په خپلو کتابچو کې په ترتیب سره ولیکئ.

--- --- ---

--- --- ---

۴- د ۴۰ او ٦۰ په منځ کې څو عددونه ۵۰ ته نژدې دي؟ په ترتیب سره يې ولیکئ.

کورنی دنده

د ۷۹، ۷۵ او ۷۶ عددونو څخه کوم عددونه او یا او کوم يې اتیا ته نژدې دی؟ په خپلو کتابچو کې يې ولیکئ.

خوار لسم لوست

## په عددي خط باندې د جمعې عمليه

هدف : زده کوونکی به وکړای شي د جمعې عمليه په عددي خط باندې سرته ورسوي.

**د ۱۳=۵+۸ د جمعې عمليه په عددي خط باندې داسې سرته رسوو.**
**لومړی د لاندې عددي خط په مخ باندې د صفر څخه د ۸ واحدونو په اندازه ښی خوا ته حرکت کوو او په نښه کوو، وروسته له هغه په نښه شوې نقطې څخه د ۵ واحدونو په اندازه ښی خواته حرکت کوو، ليدل کيږي چې د ۱۳ عدد ته رسيږو، دا عدد د ۸ او ۵ عددونو د جمعې حاصل ښيي.**




۱۳=۵+۸

**فعاليتونه**

**د لاندې شکلونو له مخې د هر يوه رياضي افاده وليکئ او د جمعې عمليه سرته ورسوئ.**




___ + ___ = ___




___ + ___ = ___

**کورنۍ دنده**

**لاندې عملیې د عددونو د خط پر مخ باندې سرته ورسوئ.**

۷ = ۴+۳      ۹= ۶+۳

# پنځلسم لوست

## د عددونو په خط باندې د تفریق عملیه

هدف: زده کوونکي به وکړای شي د عددونو په خط باندې د تفریق عملیه سرته ورسوي.

غواړو د عددي خط پر مخ باندې د ۱۱ له عدد څخه د ۶ عدد تفریق کړو. د عددي خط په مخ باندې د صفر له نقطې څخه د ۱۱ واحدو په اندازه ښي خواته حرکت کوو. وروسته د همدغه عددي خط پر مخ باندې د ۱۱ له عدد څخه کیڼې خواته د ۶ واحدو په اندازه شاته ګرځو او حرکت کوو. لیدل کیږي داسې نقطې ته رسیږو چې د ۵ عدد راښیي. د شکل له مخې معلومیږي چې د ۵ د عدد او د حرکت د لومړنۍ نقطې تر منځ فاصله ۵ واحده دی او په ریاضي کې هغه عملیه داسې لیکو.

۱۱-۶ = ۵




### فعالیتونه



۱۲ - ۸ = ۴

۱- د پورته مثال په پام کې نیولو سره دلاندې شکلو نوله مخې د تشو ځایونو په ډکولو سره عملیې سرته ورسوئ.



□ - □ = □



□ - □ = □

۲ - د لاندې تفریق عملیې په خپلو کتابچو کې سرته ورسوئ او د عددونو خط پر مخ باندې وښیاست؟




۱۶-۷ =?




۱۴-۸=?




۸-۳=?

کورنی دنده

د خط پر مخ باندې د لاندې عددونو د تفریق عملیه سرته ورسوئ.




۷-۴=?

# شپږم فصل

# ضرب



## شپاړسم لوست: د ضرب دعمليې پيژندنه



هدف: زده کوونکي د ضرب عمليه چې د څو مساوي عددونو د جمعې لنډې طريقې په مفهوم وپوهېږي.

**فعاليتونه**

لاندې شکلونه په نظر کې ونيسئ او په شفاهي توګه ورته ځواب ووایاست:

۱- په دوه ښاخونو باندې دوه، دوه مرغۍ ناستې دي او ټولې څو کيږي؟




۲- په لاندې تصوير کې څو ګلدانۍ وينئ او په هره ګلدانۍ کې څو ګلان دي؟ ټول څو ګلان کيږي؟




---

**لومړی مثال:**






څو قابه وينئ، په هر قاب کې څو دانې ناکه دي او د ټولو ناکو شمېر څو کيږي؟

۲+۲+۲+۲=۸

په پورته عمليه کې د ۲ رقم ۴ وارې ليدل کيږي، په دې معنا چې: ۴ وارې ۲ د ۸ سره مساوي کيږي او د ضرب په شکل يې داسې ليکو. ۸=۴ × ۲ داسې لوستل کيږي،۲ضرب په ۴ کې مساوي له ۸ سره کيږي.



دویم مثال: د لاندې عددي خط په مخ باندې د ضرب افاده په پام کې نیسو:



دریم مثال:

شپږ ستوري په څو ګروپونو کې وینئ، ټول څو ستوري کیږي؟



٦+٦+٦+٦=٢۴

هغه د ضرب په شکل داسې لیکو: ٦×۴=٢۴




١- د لاندې شکلونو د جمعې او ضرب افادې ولیکئ.



٢- د چاپیریال د موادو په واسطه د ٣×۴ افاده د جمعې په شکل وښیاست!

٣- د لاندې عددونو مجموعه د ضرب په شکل په خپلو کتابچو کې ولیکئ او حل یې کړئ.

٥+٥+٥+٥+٥+٥+٥+٥

___ × ___ = ___






مخامخ شکلونه په نظر کې ونیسئ، د هغو د جمعې او ضرب افادې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او حل یې کړئ.

___+___+___+___+___=___

___ × ___ = ___

# اوولسم لوست

## دیوه رقمي عدد ضربول په دوه رقمي عددونو کې

هدف: زده کوونکي به وکړای شي چې یو رقمي عدد په دوه رقمي

تاسو په دویم ټولګي کې د یو رقمي او دوه رقمي عددونو ضرب ولوستل، اوس د لاندې پوهیدو لپاره د ٦٣× ٥ د ضرب حاصل له نظره تیر وو. په دې پوښتنه کې لومړی ٥ د یویزو له رقم یعنې ٣ سره ضربوو چې ١٥ کیږي، د ٥ رقم د ضرب حاصل د یویزو په مرتبه کې لیکو د لسیزو مرتبه یې چې له ١ لس څخه عبارت دي د لسیزو د مرتبې دعدد په سر یې یاد داشت کوو. لکه:

$$\begin{array}{r} \overset{1}{63} \\ \times\ 5 \\ \hline 5 \end{array}$$

اوس ٥ د لسیزو په مرتبه یعنې ٦ کې ضربوو چې د ضرب حاصل یې ٣٠ کیږي او د حاصل سره (١) چې یاد داشت شوی دی جمع کوو او په حاصل ضرب کې یې لیکو.

$$\begin{array}{r} \overset{1}{63} \\ \times\ 5 \\ \hline 315 \end{array}$$

### فعالیتونه

لاندې عددونه یو له بل سره ضرب کړئ.

$$\begin{array}{r} 15 \\ \times\ 8 \\ \hline \square \end{array} \qquad \begin{array}{r} 41 \\ \times\ 8 \\ \hline \square \end{array} \qquad \begin{array}{r} 25 \\ \times\ 7 \\ \hline \square \end{array} \qquad \begin{array}{r} 44 \\ \times\ 6 \\ \hline \square \end{array}$$

$$\begin{array}{r} 25 \\ \times\ 9 \\ \hline \square \end{array} \qquad \begin{array}{r} 30 \\ \times\ 6 \\ \hline \square \end{array} \qquad \begin{array}{r} 53 \\ \times\ 7 \\ \hline \square \end{array} \qquad \begin{array}{r} 22 \\ \times\ 6 \\ \hline \square \end{array}$$






۱- تش ځايونه د ژبني ضرب او د ضرب د معلوم جز څخه په ګټه اخستني سره په مناسبو عددونو ډك كړئ.

| | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | × | ۴ | = | ۱٦ | | | × | ۳ | = | ۲۷ | | × | ۲ | = | ۱۸ |
| ۵ | × | | = | ۳۵ | | ۴ | × | | = | ۲۴ | ۳ | × | | = | ۲۴ |

۲- د كيڼ لوري د جدول له بشپړولو وروسته د ښي لوري د جدول تش ځايونه په مناسبو عددونو ډك كړئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۵ | × | ۵ | = | ۲۵ |
| ٦ | × | ۵ | = | |
| ۷ | × | ۵ | = | |
| ۸ | × | ۵ | = | |
| ۹ | × | ۵ | = | |
| ۱۰ | × | ۵ | = | |



| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۵ | × | ۵ | = | ۲۵ |
| ۵ | × | ٦ | = | |
| ۵ | × | ۷ | = | |
| ۵ | × | ۸ | = | |
| ۵ | × | ۹ | = | |
| ۵ | × | ۱۰ | = | |




له لوبيا، وړو ډبرو او يا د چاپيريال له نورو توكو څخه په ګټه اخيستني سره د لاندې جدول تش ځايونه په مناسبو عددونو سره ډك كړئ.

| × | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ٦ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | | | | | | | | | | |
| ۲ | | | | | | | | | | |
| ۳ | | | | | | | | | | |
| ۴ | | | | | | | | | | |
| ۵ | | | | | | | | | | |



# اتلسم لوست

## د ۶ او ۷ د ژبني ضرب جدول

هدف: زده کوونکي به د ۶ او ۷ ژبني ضرب زده کړي.

**پاملرنه و کړئ!**

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ١ | × | ٧ | = | ٧ |
| ٢ | × | ٧ | = | ١٤ |
| ٣ | × | ٧ | = | ٢١ |
| ٤ | × | ٧ | = | ٢٨ |
| ٥ | × | ٧ | = | ٣٥ |
| ٦ | × | ٧ | = | ٤٢ |
| ٧ | × | ٧ | = | ٤٩ |
| ٨ | × | ٧ | = | ٥٦ |
| ٩ | × | ٧ | = | ٦٣ |
| ١٠ | × | ٧ | = | ٧٠ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ١ | × | ٦ | = | ٦ |
| ٢ | × | ٦ | = | ١٢ |
| ٣ | × | ٦ | = | ١٨ |
| ٤ | × | ٦ | = | ٢٤ |
| ٥ | × | ٦ | = | ٣٠ |
| ٦ | × | ٦ | = | ٣٦ |
| ٧ | × | ٦ | = | ٤٢ |
| ٨ | × | ٦ | = | ٤٨ |
| ٩ | × | ٦ | = | ٥٤ |
| ١٠ | × | ٦ | = | ٦٠ |

**کورنۍ دنده**

د جدول له مخې دې د ٦ او ٧ عددنو ژبني ضرب له یاده زده کړي.

۱. د ژبني ضرب څخه په ګټه اخيستنې سره لاندې تش ځايونه په مناسبو عددونو سره ډك کړئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۴ | × | ۷ | = | |
| ۷ | × | | = | ۴۹ |
| ٦ | × | | = | ۳٦ |
| | × | ۷ | = | ۴۹ |
| ۷ | × | | = | ۵٦ |
| | × | ٦ | = | ۵۴ |
| ۹ | × | ۷ | = | |
| ٦ | × | | = | ۵۴ |
| | × | ۷ | = | ٦۳ |
| | × | ٦ | = | ۴۸ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۴ | × | | = | ۲۴ |
| | × | ٦ | = | ۲۴ |
| | × | ۷ | = | ۲۸ |
| ۷ | × | | = | ۳۵ |
| ٦ | × | ۵ | = | |
| | × | ٦ | = | ۴۲ |
| ٦ | × | | = | ۴۸ |
| | × | ۷ | = | ۵٦ |
| ۷ | × | ٦ | = | |
| | × | ۵ | = | ۳۵ |



لاندې عددونه ضرب کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۵ × ۸ = | ۴ × ۹ = | ۳ × ۷ = |
| ۸ × ۵ = | ۹ × ۴ = | ۷ × ۳ = |

۲- لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | |
|---|---|
| ۳ × ۸ = ☐ | ۴ × ۷ = ☐ |
| ۸ × ۳ = ☐ | ۷ × ۴ = ☐ |
| ۴ × ۸ = ☐ | ۵ × ۷ = ☐ |
| ۸ × ۴ = ☐ | ۷ × ۵ = ☐ |
| ۵ × ۸ = ☐ | ٦ × ۷ = ☐ |
| ۸ × ۵ = ☐ | ۷ × ٦ = ☐ |

۳- لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | |
|---|---|
| ۳۲ × ۶ = ☐ | ۶۴ × ۷ = ☐ |
| ۴۶ × ۶ = ☐ | ۷۶ × ۷ = ☐ |

کورنۍ دنده

د ۸ او ۷ ژبنۍ ضرب جدول په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# نولسم لوست

## د ۹،۸ او ۱۰ عددونو د ژبني ضرب جدولونه

هدف : زده کوونکي به د ۸ ، ۹ او ۱۰ عددنو په ژبني ضرب پوه شي او په ورځنی ژوند کې ورڅخه ګټه واخلي.

**د ژبني ضرب لاندې هر یوه جدول ته پاملرنه وکړئ.**

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | × | ۸ | = | ۸ |
| ۲ | × | ۸ | = | ۱۶ |
| ۳ | × | ۸ | = | ۲۴ |
| ۴ | × | ۸ | = | ۳۲ |
| ۵ | × | ۸ | = | ۴۰ |
| ۶ | × | ۸ | = | ۴۸ |
| ۷ | × | ۸ | = | ۵۶ |
| ۸ | × | ۸ | = | ۶۴ |
| ۹ | × | ۸ | = | ۷۲ |
| ۱۰ | × | ۸ | = | ۸۰ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | × | ۹ | = | ۹ |
| ۲ | × | ۹ | = | ۱۸ |
| ۳ | × | ۹ | = | ۲۷ |
| ۴ | × | ۹ | = | ۳۶ |
| ۵ | × | ۹ | = | ۴۵ |
| ۶ | × | ۹ | = | ۵۴ |
| ۷ | × | ۹ | = | ۶۳ |
| ۸ | × | ۹ | = | ۷۲ |
| ۹ | × | ۹ | = | ۸۱ |
| ۱۰ | × | ۹ | = | ۹۰ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | × | ۱۰ | = | ۱۰ |
| ۲ | × | ۱۰ | = | ۲۰ |
| ۳ | × | ۱۰ | = | ۳۰ |
| ۴ | × | ۱۰ | = | ۴۰ |
| ۵ | × | ۱۰ | = | ۵۰ |
| ۶ | × | ۱۰ | = | ۶۰ |
| ۷ | × | ۱۰ | = | ۷۰ |
| ۸ | × | ۱۰ | = | ۸۰ |
| ۹ | × | ۱۰ | = | ۹۰ |
| ۱۰ | × | ۱۰ | = | ۱۰۰ |







**زده کوونکي دې د ۸ او ۹ ژبني ضرب د کاغذ په ټوټو باندې ولیکي او یاد دې کړي.**

**مشق او تمرین**

۱- د ۸ ژبني ضرب څخه په ګټه اخستنې سره لاندې تش ځایونه ډك كړئ.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۸ | | | ۲۴ | | | | ۵۶ | | ۸۰ |

۲- د ۹ او ۷ د ژبني ضرب په نظر كې نیولو سره لاندې تش ځایونه ډك كړئ.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۹ | ۱۸ | | ۳۶ | | | | | ۸۱ | |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۷ | | ۲۱ | | | ۴۲ | | | ۶۳ | |

۳- په یوه بڼ كې ۸ هلكان د مڼو په ټولولو بوخت دي، كه چېرې هر هلك ۷ دانې مڼې ټولې كړې وي، معلوم كړئ چې ټولې یې څو مڼې ټولې كړې دي.

یادونه: لاندې مثال په پام كې ونیسئ.

۸×۳=۲۴ یا ۳×۸=۲۴




د پورته مثال سره سم لاندې پوښتنې په عددي خط باندې حل كړئ.

الف: ۲×۹=۱۸ ۹×۲=۱۸

ب: ٦×۴=۲۴ ۴×٦=۲۴

لاندې پوښتنې د حل شوي مثال په ډول حل کړئ.

۱ مثال:

| | |
|---|---|
| ۴۷ | ۱۲۸ |
| × ۸ | × ۹ |
| ۳۷۶ | ۱۱۵۲ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۱۴ | ۲۴ | ۳۸ |
| × ۷ | × ۹ | × ۸ |
| | | |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۷۸ | ۹۸ | ۲۸۹ |
| × ۹ | × ۷ | × ۸ |
| | | |

۲- د لاندې شکل په پام کې نیولو سره د ضرب ریاضیکي افادې ولیکئ.




کورنۍ دنده

ټول زده کوونکي دې د ۸، ۹ او ۱۰ ژبني ضرب له یاده زده کړي او په خپلو کتابچوکې دې ولیکي.

# شلم لوست

## د (۱ - ۱۰) پورې د ژبني ضرب له جدول څخه د کار اخستلو طریقه

هدف: زده کوونکي د ژبني ضرب جدول وپيژني او له هغه څخه ګټه واخستلای شي.

**لاندې د ژبني ضرب جدول ته پاملرنه وکړئ:**

| × | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
| ۲ | ۲ | ۴ | ۶ | ۸ | ۱۰ | ۱۲ | ۱۴ | ۱۶ | ۱۸ | ۲۰ |
| ۳ | ۳ | ۶ | ۹ | ۱۲ | ۱۵ | ۱۸ | ۲۱ | ۲۴ | ۲۷ | ۳۰ |
| ۴ | ۴ | ۸ | ۱۲ | ۱۶ | ۲۰ | ۲۴ | ۲۸ | ۳۲ | ۳۶ | ۴۰ |
| ۵ | ۵ | ۱۰ | ۱۵ | ۲۰ | ۲۵ | ۳۰ | ۳۵ | ۴۰ | ۴۵ | ۵۰ |
| ۶ | ۶ | ۱۲ | ۱۸ | ۲۴ | ۳۰ | ۳۶ | ۴۲ | ۴۸ | ۵۴ | ۶۰ |
| ۷ | ۷ | ۱۴ | ۲۱ | ۲۸ | ۳۵ | ۴۲ | ۴۹ | ۵۶ | ۶۳ | ۷۰ |
| ۸ | ۸ | ۱۶ | ۲۴ | ۳۲ | ۴۰ | ۴۸ | ۵۶ | ۶۴ | ۷۲ | ۸۰ |
| ۹ | ۹ | ۱۸ | ۲۷ | ۳۶ | ۴۵ | ۵۴ | ۶۳ | ۷۲ | ۸۱ | ۹۰ |
| ۱۰ | ۱۰ | ۲۰ | ۳۰ | ۴۰ | ۵۰ | ۶۰ | ۷۰ | ۸۰ | ۹۰ | ۱۰۰ |

**د جدول نه د کار اخیستنې طریقه:**

**د ۵ × ۴د ضرب د پیدا کولو له پاره د ښي لاس یوې ګوتې ته د لومړۍ لیکې د ۴ له عدد څخه کښته خواته حرکت ورکړئ اود کیڼ لاس یوې ګوتې ته د لومړۍ ستنې (ستون) د ۵ له عدد څخه ښۍ خواته حرکت ورکړئ، په نتیجه کې دواړه ګوتې په یوه عدد باندې سره یو ځای کیږي، کله چې عدد ولولئ لیدل کیږي چې د ۲۰ عدد دی چې د ۵ × ۴ د عملیې د ضرب حاصل دی. یعنې: ۲۰ = ۵ × ۴**






١- د جدول څخه په ګټې اخېستو سره ځوابونه په خپلو کتابچو کې په تشو ځايونو کې وليکئ.

| | |
|---|---|
| ٥×٦= □ | ١٠×١= □ |
| ٧×٨= □ | ٦×٨= □ |
| ٩×٦= □ | ۴×٨= □ |

٢- لاندې عددونه يو له بله سره ضرب کړئ او ځوابونه يې د ژبني ضرب په جدول کې پيدا کړئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۴ | ٦ | ٥ | ٩ | ٨ | ٧ |
| ٥ × | ٨ × | ٧ × | ٦ × | ٨ × | ٦ × |
| □ | □ | □ | □ | □ | □ |

٣- په متناوب ډول، اته، اته وشميرئ او تش ځايونه پرې ډك کړئ.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | ٧٢ | | ٥٦ | | | ٣٢ | | | ٨ |

۴- د ژبني ضرب څخه په ګټې اخستنې سره لاندې تش ځايونه په مناسبو عددونو ډك کړئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| □ | □ | ٩ | ٩ | □ |
| ٠ × | ٩ × | ٦ × | □ × | ٦ × |
| ٠ | ٧٢ | | ۴٥ | ٠ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ٨ | ٨ | ٦ | ٧ |
| □ × | □ × | □ × | □ × |
| ٠ | ٨ | ٥۴ | ٠ |

۵- په ۸، ٦ او ۴ عددونو کې ډېر لوی عدد لـه ډېـر کـوچني عـدد سـره ضرب او د ضرب حاصل يې پيدا کړئ.

□
□
———
□

٦- لطيفې ۹ قطي تباشير راواخيستل که چېرې په هرې قطي کې ۸ قلمـه تباشير وي معلوم يې کړئ چې لطيفې څو قلمه تباشير اخيستلي دي؟

٧- د ژبني ضرب د جدول په مرسته لاندې جدول ډک کړئ.

| × | ۸ | ٧ | ۹ | ۵ | ٦ |
|---|---|---|---|---|---|
| ۸ | | | | | |
| ٧ | | | | | |
| ۹ | | | | | |




زده کوونکي دې لاندې پوښتنې حل کړي.

$$\begin{array}{r} ١۴ \\ \times \quad ٧ \\ \hline \square \end{array} \qquad \begin{array}{r} ١۵ \\ \times \quad ۸ \\ \hline \square \end{array} \qquad \begin{array}{r} ٢٢ \\ \times \quad ۹ \\ \hline \square \end{array}$$

# یوویشتم لوست

## د ضرب په عملیه کې د بدلون خاصیت

هدف: زده کوونکي به د ضرب په عملیه کې د بدلون په خاصیت پوه او په ضرب کې به د بدلون خاصیت سر ته ورسوي.

**مثال: تاسو پوهېږئ چې:** ٦+٦+٦+٦+٦=٣٠

یا:

| د ضرب حاصل | | د ضرب دویم جز | | د ضرب لومړی جز |
|---|---|---|---|---|
| ٣٠ | = | ۵ | × | ۶ |

**اوس غواړو چې د ۵ عدد ٦ واري جمع کړو.**

۵+۵+۵+۵+۵+۵=٣٠

یا:

| د ضرب حاصل | | د ضرب دویم جز | | د ضرب لومړی جز |
|---|---|---|---|---|
| ٣٠ | = | ٦ | × | ۵ |

**د دوو پورتنیو افادو له پرتله کولو څخه دا نتیجه اخستل کیږي چې د ضرب د اجزاوو د ځایونو په بدلون سره د ضرب حاصل بدلون نه کوي. یعنې:**

۶×۵=۵×۶=٣٠

## فعالیت

۱- د ۵٦= ☐ ×۷ افاده په نظر کې و نیسئ.

الف: د ضرب کوم جز نا معلوم دی؟ ------

ب: د ۷ عدد د ضرب کوم جز دی؟ ------

ج: د ۵٦ عدد په څه نامه یادیږي؟ ------

د: نامعلوم جز یا تش ځای په یوه مناسب عدد سره ډک کړئ.

۲- د ۵٦ =۷× ☐ په افاده کې.

الف: د ضرب کوم جز نامعلوم دی؟ ------

ب: نامعلوم جز یا تش ځای په یوه مناسب عدد سره ډک کړئ.

ج: د (۱) او (۲) پوښتنو افادې یو له بله سره پرتله کړئ او وواياست چې څه توپير لري؟

د: کومه پایله چې د (۱) او (۲) پوښتنو له پرتله کولو څخه لاس ته راغلې په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

کورنی دنده

د نمونې په ډول خالي ځایونه په مناسبو عددونو سره ډک کړئ.

نمونه:

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۴۲ | = | ۷ | × | ۶ | = | ۶ | × | ۷ |
| ۵۴ | = | ۶ | × | | = | | × | ۶ |
| ۵۶ | = | ۷ | × | | = | ۸ | × | ۷ |




۱- د کیڼ لوري د ضرب څخه په ګټې اخستنې سره د ښي لوري د ضرب تش ځایونه بشپړ کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۴۲ = □ × ۷ | ↔ | □ = ۷ × ۶ |
| ۶۳ = ۹ × □ | ↔ | □ = ۷ × ۹ |
| ۲۴ = □ × ۸ | ↔ | □ = ۸ × ۳ |
| ۲۴ = ۶ × □ | ↔ | □ = ۴ × ۶ |
| ۲۱ = □ × ۳ | ↔ | ۲۱ = □ × ۷ |

۲- په لاندې پوښتنو کې تش ځایونه ډك کړئ.

الف: □ × ۴ = ۴

ب: ۶ × □ = ۰

ج: ۷ × □ = ۷

۳- لاندې جدولونه بشپړ کړئ.

| × | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰ | | | ۳۰ | | | ۶۰ | | | ۹۰ | |

| × | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۷ | ۷ | | | ۲۸ | | | ۴۹ | | | |

| × | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۸ | | ۱۶ | | | ۴۰ | | ۵۶ | | ۷۲ | |




په لاندې تشو ځایونو کې داسې عددونه ولیکئ چې د ضرب حاصل یې بدلون ونکړي.

□ = ۷ × ۴ = ۴ × □

□ = ۸ × □ = ۴ × ۸



# دوه ویشتم لوست

## په ۱ ، ۱۰ او ۱۰۰ کې د یوه عدد ضربول

هدف: زده کوونکي به په ۱ ، ۱۰ او ۱۰۰ کې د یوه عدد ضربول د یوي آساني طريقى په توگه ويېژني.




په لنډ ډول داسې لیکل کیږي.

$$1 \times 5 = 5$$

کولای شو چې د ضرب عملیه په لاندې ډول هم ونښیو.



په پورته شکل کې ۵ داني منې یو واري وینو نو د ضرب عملیه یې داسې لیکو.

$$1 \times 5 = 5$$

له پورته دوو عملیو څخه دا نتیجه لاس ته راځي، که چیري (۱) په هر عدد کې او یا هر عدد په (۱) کې ضرب شي د ضرب حاصل یې په خپله هم هغه عدد دی ، نو لیکلی شو چې:

$$1 \times 8 = 8$$

$$8 \times 1 = 8$$

$$4 \times 1 = 4$$

$$1 \times 4 = 4$$

$$64 \times 1 = 64$$

$$1 \times 64 = 64$$



## فعالیت

په تشو ځایونوکې د حل شوي مثال په ډول مناسب عددونه ولیکئ.

**مثال :** ۹ = ۹ × ۱

| | | |
|---|---|---|
| □ = ۱ × ۱ | □ = ۷۱ × ۱ | □ = ۱۸۲ × ۱ |
| ۱۲۷۸ = ۱ × □ | ۲۵۴ = ۲۵۴ × □ | ۴۲۰ = ۴۲۰ × □ |
| □ = ۱ × ۲۷۸۱ | □ = ۱ × ۱۹۴ | ۳۰۷ = □ × ۳۰۷ |
| ۲۷۶۴ = □ × ۱ | □ = ۱ × ۷۰۰۲ | ۴۰۰۵ = □ × ۴۰۰۵ |
| □ = ۱ × ۶۰۱ | ۷۶۴۰ = □ × ۷۶۴۰ | ۲۶۵ = ۲۶۵ × □ |

**کورنی دنده**

زده کوونکي دې د لاندې عددونو د ضرب حاصل په لاس راوړي.

?= ۷۴۰ × ۱      ?= ۱ × ۱۸۴      ?= ۱ × ۶۱

## د ۱۰ ضربول په یوه عدد کې:

۱ مثال: ۵۰= ۱۰+۱۰+۱۰+۱۰+۱۰

تاسو پوهیږئ چې:

۱۰ پنځه واري جمع شوي دي.

۱۰×۵ =۵۰



۲ مثال : ۷۰=۱۰+۱۰+۱۰+۱۰+۱۰+۱۰+۱۰

۱۰ اووه واري جمع شوي دي .

۱۰×۷=۷۰




له پورته شکلونو او عملیو څخه معلومیږي، که چیرې ۱۰ په هر عدد کې ضرب شي او یا هر عدد په ۱۰ کې ضرب شي، لومړی یو په هم هغه عدد کې ضربوو بیا د ضرب د حاصل ښی خواته یو صفر لیکو یا په لنډ ډول د هم هغه عدد ښی خواته یو صفر ږدو او د ضرب د حاصل په ځای کې یې لیکو.

فعالیت: لاندي پوښتني حل کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰×۷۶۸= | ۱۰×۱۳۴= | ۱۰×۹= |
| ۲۳۵۶×۱۰= | ۷۲۱×۱۰= | ۸×۱۰= |

کورنی دنده

په یو رقمي عددونو کې د (۱) عدد ضرب او په یو رقمي عددونو کې د (۱۰) عدد ضرب د لاندي جدول په خالي ځایونو کې ولیکئ او نتیجه یې ولیکئ چې یو له بل څخه څه توپیر لري.

| × | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | | | ۳ | | ۵ | | | ۸ | |
| ۱۰ | | | ۳۰ | | ۵۰ | | | ۸۰ | |

## په یوه عدد کې د ۱۰۰ ضربول:

لومړی مثال:



۱۰۰ + ۱۰۰ = ۲۰۰

دوه ځلي ۱۰۰ ليدل کيږي. ۱۰۰ × ۲ = ۲۰۰

دويم مثال:



۱۰۰+۱۰۰+۱۰۰+۱۰۰+۱۰۰ = ۵۰۰

۱۰۰×۵=۵۰۰

د پورتنيو عمليو او شکلونو څخه نتيجه لاس ته را ځي، که چېرې ۱۰۰ په یوه عدد کې یا یو عدد په ۱۰۰ کې ضرب شي، کولی شو عدد د ضرب د حاصل په ځای کې ولیکو او ښي خواته یې دوه صفرونه کيږدو.

### فعالیت

دلاندې عمليو د ضرب حاصل پیدا کړئ.

۶ × ۱۰۰ = ?

۶۷ × ۱۰۰ = ?

۲۱۳ × ۱۰۰ = ?

۴۷ × ۱۰۰ = ?

۱۶ × ۱۰۰ = ?

کورنی دنده

زده کوونکي دې لاندې پوښتنې حل کړي:

۱۰۰×۳ ۱۰۰×٤ ۱۰۰×٥




**لاندې پوښتنې د حل شوو مثالون په څير په خپلو كتابچو كې حل كړئ.**

**مثالونه**

١٠٠×١٠=١٠٠٠

١٠٠×٢=٢٠٠

-:١

| | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ١٠٠ | × | | = | ٤٠٠ | | | | | | × | ١١ | = | ١١٠٠ |
| | × | ٦ | = | ٦٠٠ | | | | | ١٠٠ | × | | = | ٢٥٠٠ |
| ١٠٠ | × | | = | ٩٠٠ | | | | | | × | ٢٠ | = | ٢٠٠٠ |
| ٩ | × | | = | ٩٠٠ | | | | | | × | ١٠٠ | = | ٢٠٠٠ |

**٢-يو سړي يو كارتن منې پـه ١٠٠ افغـانۍ وپلـورلې، د ٨ كـارتنو قيمت ملعوم كړى .**

**٢-كه يو كس په يوه ورځ ٢٥٠ افغانۍ اجوره واخلي، د ١٠٠ ورځو اجوره يې څو افغانۍ كيږي؟**




**كه چېرې په يوه كارتن كې ١٠٠ پاكټـه چاكلېـټ وي، معلـوم يـې كړئ چې په ٧ كارتنوكې به څو پاكټه چاكلېټ موجود وي؟**




۱ – لاندې عددونه یوله بله سره ضرب کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰۰ × ۸۴ | ۱۰ × ۸۲ | ۱۰۰ × ۸٦ |
| ۱۰۰ × ۷٦۰ | ۱۰۰ × ۸۹۰ | ۱۰۰ × ۲۴۰ |
| ۷۴۰ × ۱۰۰ | ۱۰ × ٦۰۴ | ٦۰۴ × ۱۰ |

۲ – یوه هټیوال په یوه ورځ کې ۱۰۰ متره ټوکر وپلورل، کــه چېـرې د یو متر ټوکر بیه ۱۸ افغانۍ وي، معلوم یې کړئ چــې څــو افغـانۍ یې په لاس راوړې دي.

۳ – که چېرې یوې کورنۍ په یــوه میاشــت کــې د ۱۰۰ افغـانیو بـوره اخیـستې وي، معلــوم یــې کــړئ چــې نومـوړې کـورنۍ بـه پـه ۱۲ میاشتو کې دڅو افغانیو بوره راواخلي؟




د ۷۰، ۸۴، ۹۳، ۹۰ او ۳۵ عددونه د (۱۰) او (۱۰۰) عدد ونـوکې ضـرب کـړئ، د ۱۰ او ۱۰۰ د ضـرب حاصـل یـې یولـه بلـه سـره پـر تلـه او نتیجې یې ولیکئ.

# اووم فصل
# داندازه کولو واحدات

## درویشتم لوست: د اوږدوالي د اندازه کولو واحد (متر)

هدف: زده کوونکي به متر داوږدوالي د واحد په توګه وپيژني او له هغه څخه به په ورځني ژوند کې کار واخستلی شي.

فهیمې خپلې خورته ولیکل چې زه د کړکۍ یوې پردې ته اړتیا لرم، مهرباني وکړه داسې یوه پرده راولیږه چې جګوالي یې ۱۰ لوېشتې او سور یې ۱۲ لوېشتې وي. د فهیمې خور ښارته ولاړه د خپلي خور له هدایت سره سم یې تېوکر واخیسته پرده یې ور څخه و ګنډله او ور ویې لیږله. کله چې فهیمې پرده په کړکۍ باندې را وځړوله ډېره خواشینې شوه، د هغې د خواشینتیا علت څه وي؟

څرنګه چې لویشتې یوله بله سره توپیر لري او پرده یې د اړتیا سره سمه نه وه لنډه شوه اوس تاسو ووایاست چې څه باید وکړو.



څرنګه چې د نړۍ ټول خلک د دغه ډول ستونزو سره مخامخ اولاس په ګرېوان وو، نو د نړۍ پوهانو او علماؤ د اوږدوالي واحد چې متر بلل کیږي ومانه چې نن د اوږدوالي له همدې واحدڅخه کار اخستل کیږي.






فعالیتونه: ښوونکی دې دوه تنه زده کوونکي دټولګي مخې ته را وغواړي او یو د بل په واسطه دې دهغوی قدونه اندازه کړي.




۱- د خپل ټولګي اوږدوالی او سور د متر په واسطه اندازه کړئ
۲- ستاسو په ډله کې د کوم یوه د قد اوږدوالی له یو متر څخه زیات دی؟
۳- ستاسو په ډله کې د کوم یوه غړي د قد اوږدوالی له یوه متر څخه کم دی؟
۴- ستاسو د ټولګي اوږدوالی د هغه له سور څخه څومره زیات دی؟
۵- ستاسو د میز اوږدوالی له یوه متر څخه زیات دی او که کم؟
۶- ستاسو د میز سور له یوه متر څخه څولوېشتې کم دی؟




د خپل کور د یوې کوټې اوږدوالی او سور د متر په واسطه اندازه کړئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

# څلورویشتم لوست

## سانتي متر

هدف: زده‌کوونکي به سانتی متر د متر د جزء (د یوه متر دسلمې برخې) په توګه وپیژني او په ورځني ژوند کې به له هغه څخه کار واخلي.

تاسو به لیدلي وي چې ټوکر پلورونکي د ټوکرد اخیستلو او پلورلو لپاره دیوې فلزي ټوټې څخه کار اخلي، ترکاڼان، معماران او مهندسان د شیانو د اوږد والي د اندازه کولو لپاره د متر له فیتو څخه کار اخلي ښاغلی ښوونکی دې په تولګې د تختې په مخ باندې دیوه متر په اندازه یو خط رسم کړي او د زده‌کوونکو پام دې ورته را وګرځوي، بیادې زده‌کوونکو ته دنده ورکړي، هغه متر چې له لرګي، لښتې یا تار څخه یې جوړکړی دی، څرنګه ورڅخه کار اخلي؟ تر څو د تولګي او میز اوږدوالی او سور اندازه کړي. په ځینو حالاتو کې به ووینئ چې د میز اوږدوالی او سور له متر څخه زیات یا کم دی، په دې صورت کې اړتیا پیداکیږي چې د اوږدوالي کوچنی واحد هم وپیژنو، نو که چیرې یو متر په سلو مساوي برخو جلا کړو هرې برخې ته یې یو سانتي متر وایي. تاسو کولی شئ سانتي متر د خپل خط کش په لیدو سره وپېژنئ.

**۱۰۰ سانتي متره = ۱متر**



=









۱- ستاسو خط کش څو سانتي متره دی؟




۲- ۱۰۰ سانتي متره څو متره کېږي؟

۳- د خپل کتاب اوږدوالی او سور اندازه کړئ.



۴- که چېرې ستاسو د مېز اوږدوالی له یوه متر څخه زیات او له دو و مترو څخه لږ وي، د اندازه کولو د کوم واحد څخه کار اخلئ؟



۵- د ا ب ، ب ج ،او ا ج د قطعه خطونو اوږدوالی اندازه کړئ او ووایاست چې هر یو څو سانتي متره دی؟







زده کوونکي دې د ۵ سانتي مترو، ۱۰ سانتي مترو او ۲۰ سانتي مترو په اندازه قطعه خطونه په خپلو کتابچو کې رسم کړي.

# پنځه و يشتم لوست

## د يسي متر

**هدف:** زده کوونکي به وکولی شي چې د يسي متر د متر د جزء په توګه وپیژنی او د اړتیا په وخت کې کار ور څخه واخلي.

## فعاليتونه

له خپل خط کش څخه په کار اخيستنی سره لاندې فعاليتونه سرته ورسوئ.

١- ستاسو خط کش څو سانتي مترو دی؟
٢- د ١٠ سانتي مترو په اندازه يو قطعه خط رسم کړئ.
٣- د يوې لښتې يا د کاغذ له ترېشې څخه د ١٠ سانتيم ترو په اندازه جلا کړئ.
٤- د جلا شوې لښتې يا د کاغذ د ترېشې په واسطه يو متر واټن اندازه کړئ.
٥- و واياست ستاسو د جلا شوې برخې څو لښتې يو متر کيږي؟

هغو زده‌کوونکو چې په دقيقه توګه يې کار سرته رسولی دی ښايې ووايي چې ١٠ لښتې يا ١٠ ترېشی يو متر کيږي، هغه دې تشويق شي او پوښتنې دې ورڅخه وشي.

په تاسوکې څوك ويلی شي چې دغه د ١٠ سانتي مترو لښته په بل څه نامه يادیږي؟

بايد وپوهيږئ چې دا د ١٠ سانتي مترو واټن يو ديسي متر بلل کيږي.

نو ويلی شو:

١٠ ديسي متره = يو متر        ١٠ سانتي متره = ١ ديسي متر



**پوښتنې:**

١- ۴ متره څو ديسي متره کيږي؟
٢- د کريم د قد اوږدوالی ١٣٠ سانتي متره دی، د کريم د قد اوږدوالی په ديسي متر سره معلوم کړئ؟
٣- و واياست چې ١٢٥ سانتي متره څو ديسي متره او څوسانتي متره کيږي؟

**کورنۍ دنده**

د يو ديسي متر جلا شوې لښتې څخه کار واخلئ د خپل کور د يوه وره سور اندازه کړئ او وواياست چې څو ديسي متره او څو سانتي متره کيږي؟

## شپږ و یشتم لوست

# ملي متر

**هدف:** زده کوونکي به وکولی شي چې ملي متر و پیژني او د اوږدوالي د اندازه کولو د کوچني واحد په توګه ور څخه کار واخلي.

## فعالیتونه

لاندې شکل ته پاملرنه وکړئ.



دا شکل د یوه سانتي متر واټن (فاصله) راښیي چې په لسو مساوي برخو ویشل شوی دی.

هرې برخې ته یې یو ملي متر وایي په دې صورت کې.

○ ملي متره = ۱ سانتي متر کیږي

لومړی مثال: ۲ سانتي متره څو ملي متره کیږي ؟

حل: پوهیږو چې یو سانتي متر له لسو ملي مترو سره مساوي دی، نو ۲ سانتي متره مساوي کیږي له.

۲۰ ملي متره = ۱۰ ملي متره + ۱۰ ملي متره

یا ۲۰ ملي متره = ۲×۱۰ ملي متره

دویم مثال: غواړو چې د لاندې قطعه خط اوږدوالی د خط کش په واسطه اندازه کړو.




د خط کش صفر د (۱) له ټکي سره سمېږدو لیدل کیږی چې د هغه د (ب) ټکی د ۵ سانتي مترو څخه ۵ ملي متره زیات دی، نو وایو چې ددې قطعه خط اوږدوالی ۵ سانتي متره او ۵ ملي متره دی.

په عمومي توګه ليکلی شو چې:

۱۰ ديسي متره = ۱ متر

۱۰۰ سانتي متره = ۱ متر

۱۰۰۰ ملي متره = ۱ متر

۱۰ سانتي متره = ۱ ديسي متر

۱۰ ملي متره = ۱ سانتي متر




د حل شوي مثال څخه په ګټې اخيستنې سره لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

۱. ۴ سانتي متره څو ملي متره کيږي؟
۲. ٦ سانتي متره څوملي متره کيږي؟
۳. د خپل خط کش څخه په ګټې اخيستنې سره لاندې قطعه خطونه اندازه کړی او ووایاست چې هر يو څو سانتي متره او څو ملي متره کيږي؟




۴. د ۵ سانتي مترو او ۵ ملي مترو په اندازه يو قطعه خط رسم کړئ
۵. يو قطعه خط رسم کړئ چې له ۵ سانتي مترو څخه ۲ ملي متره کم وي.




۳ سانتي متره څو ملي متره کيږي؟

۵ سانتي متره څو ملي متره کيږي؟

۴ ديسي متره څو سانتي متره او څو ملي متره کيږي؟



# اووه ويشتم لوست

## کيلو متر

هدف: زده کوونکي به وکولی شي چې د متر څخه لوی واحد، (کيلو متر)وپيژني.

حامد له خپل پلار څخه پوښتنه وکړه، پلار جانه کوچني واټنونه(فاصلې) مو دديسي متر، سانتي متر، ملي متر او متر په واسطه اندازه کړل، د دوو ښارونو تر منځ واټن په څه شي سره اندازه کولای شو؟ پلار يې ځواب ورکړ، زويه، لوی واټنونه لکه: د ښارونو او هيوادونو تر منځ واټنونه د کيلو متر په واسطه اندازه کيږي.

حامد پوښتنه وکړه کيلو متر څه شی دی؟ پلار يې ځواب ورکړ، زر (۱۰۰۰) متر واټن ته يو کيلو متر وايي. يعني: ۱۰۰۰ متره = ۱کيلومتر

مثال: که چيرې د دوو ښارونو ترمنځ واټن ٦ کيلو متره وي، نوموړی واټن په متر سره حساب کړئ.

۶۰۰۰ متره = ۱۰۰۰ متر + ۱۰۰۰ متر + ۱۰۰۰ متر + ۱۰۰۰ متر+ ۱۰۰۰متر+۱۰۰۰متر

۶۰۰۰متر = ٦×۱۰۰۰

په پورته مثال کې سربېره پر دې چې د متر او کيلو متر ترمنځ په رابطه پوه شوو، که چيرې يو عدد په ۱۰۰۰ کې ضرب شي کولی شو د ضرب په حاصل کې د هم هغه عدد ښی خوا ته درې صفرونه وليکو.




۱. ۴ کيلو متره له څو مترو سره مساوي کيږي؟
۲. ۷ کيلو متره له څو مترو سره مساوي کيږي؟
۳. ۲کيلو متره څو متره کيږي؟

کورنی

۱- د کابل او هرات ترمنځ واټن ۱۰۹۳ کيلومتره دی، که چيرې د کابل او قندهار ترمنځ واټن ۵۰۵ کيلومتره وي، د قندهار او هرات ترمنځ واټن معلوم کړئ.





# اتم فصل
# هندسه

## اته و یشتم لوست: نقطه، قطعه خط، نیم خط او مستقیم خط

**هدف:** زده‌کوونکي به نقطه، قطعه خط، نیم خط(شعاع) او مستقیم خط وپیژني او یو له بله سره یې توپیر وکړای شي.

**فعالیتونه**

تا سو لاندې هندسي شکلونو او نومونو ته پاملرنه، وکړئ. او له هر یوه سره چې بلدتیا لرئ، نوم یې واخلئ او رسم یې کړئ.




پورتني شکلونه په نظر کې ونیسئ او لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

۱- دا (.) نښه چې د پنسل د څوکې په واسطه د کاغذ د پاڼې په مخ اېښودل شوې ده څه نومیږي؟

۲- د (ا●————●ب) شکل د څه په نامه یا دیږي؟

۳- که چیرې د خپل پنسل څوکه په کاغذ باندې کیږدو او په مستقیم ډول حرکت ورکړو، څه شی لاس ته راځي؟

۴- په لاندې شکلونو کې څو قطعه خطونه وجود لري؟



۵- که چیرې د (ا ب) قطعه خط تر ښی او کیڼې خواته امتداد ورکړو، کوم هندسي شکل لاس ته راځي.




۶- که چېرې د (ب) له نقطې څخه ښی خوا ته یو مستقیم خط رسم او ادامه ورکړو، کوم شکل لاس ته راځي؟ رسم یې کړئ.




- زده کوونکي دې لاندې شکلونه په خپلو کتابچو کې رسم کړي او دهغو نومونه دې ولیکي.



- د کاغذ پرمخ دوه نقطې وټاکئ او بیا یې په مستقیمه توګه یو له بل سره ونښلوئ، په دواړو نقطو باندې نومونه کیږدی. یعنی ا، ب، وواياست چې دا خط په څه نامه یادیږي؟




۱- لـه دې شـکلونو څخـه کـوم یـو یـې مـستقیم خـط، کـوم یـو یې نـیم خط(شعاع) او کوم یو یې قطعه خط دی؟



د لومړي پوښتنې شکلونه په نظر کې ونیسئ، د شکلونو له مخې لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

الف: آیا یو مستقیم خط او یوه شعاع یوله بله توپیر لري؟

ب: یوه شعاع او یو قطعه خط یو له بل سره څه توپیر لري؟

ج: یو قطعه خط او یو مستقیم خط یو له بل سره څه توپیر لري؟

۲- په لاندې شکل کې څومستقیم خطونه او څو قطعه خطونه دي؟






په لاندې شکل کې څو قطعه خطونه لیدلی شئ؟ د دوو نقطو په واسطه یې وښیاست.



# نهه ویشتم لوست

## د خط ډولونه

هدف: زده کوونکي به مستقیم، منکسر او منحني خطونه وپیژني او یو له بل سره یې توپیر وکړای شي.

**فعالیتونه**

د چو کاټ د شکلونو نمونه ولولئ او په خپلو کتابچو کې یې رسم کړئ.




لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست.

الف: له لاندې شکلونو څخه کوم یو منکسر خط دی او کوم یې منکسر خط نه دی؟



ب: ستاسو د مېز یوه څنډه یا د کتاب یوه څنډه مستقیم خط دی او که منحني خط؟



ج: د ا ⟷ ب او ج ⟷ د شکلونه یو له بل سره څه توپیر لري؟

د: که چیرې یو تار د دوارو لاسونو په واسطه ښه کش کړئ، کوم خط ښیي؟ که چېرې کش یې نکړئ او خپل لاسونه سره نږدې کړئ کوم خط ښیي؟

هـ: په خپل ټولګي کې د ځوشیانو نومونه واخلئ چې دمنکسر خط او منحني خط شکلونه ولري.



کورنۍ دنده

۱- لاندې شکلونه په نظر کې ونیسئ، هر یو شکل په خپلو کتابچو کې رسم او نومونه یې ولیکئ.




۲ - د خپل چاپیریال د هغو شیانو او شکلونو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ چې د منکسر، منحني او مستقیم خطو نو شکل ولري.

# دېرشم لوست

## د زاويو ډولونه

**هدف**: زده کوونکي به زاويه او د هغې ډولونه وپيژني.

**فعاليتونه**

**تاسو له لاندې شکلونو سره پېژند ګلوي لرئ.**




**اوس غواړو چې قايمه زاويه په عملي توګه له کاغذ څخه جوړه کړو او له هغې څخه په ګټې اخيستنې سره نورې زاويې وپيژنو.**

**ګرانو زده‌کوونکو! تاسو هر يو يوه ټوټه کاغذ په لاس کې ونيسئ.**

**الف: هغه قات کړئ.**

**ب: قات شوى کاغذ په يو بل باندې داسې قات کړئ چې د قات شوي کاغذ څنډې په يو بل باندې منطبق راشي.**

**ج: د قات شوي کاغذ کنج يوه قايمه زاويه جوړوي.**

**د: قات شوي کنج د کاغذ په مخ باندې کېږدئ او زاويه رسم کړئ.**

**هـ: خپلې رسم کړې زاويې ته پاملرنه وکړئ او وواياست چې د لاندې کومې يوې زاويې سره برابره ده؟ او همدارنګه چې له کومې زاويې څخه لويه او کومې يوې څخه کوچنۍ ده؟**




**په پورته شکلونو کې به ووینئ چې ستاسو جوړه کړې زاویه د قایمې زاویې سره برابره، حاده زاویه له هغې څخه کوچنۍ او منفرجه زاویه له هغې څخه لویه ده.**




**زده کوونکي دې د کاغذ له یوې ټوټې څخه قایمه زاویه جوړه کړي او ټولګي ته دې راوړي.**




۱- د خپلې جوړې کړې قایمې زاویې په کارولو سره لاندې شکلونه په خپلو کتابچو کې رسم او د هغو له زاویو سره یې پر تله کړئ.
وواياست چې هر یو شکل څو زاویې لري او د هر شکل نوم ولیکئ.




له پرتله کولو وروسته به تاسو وویني چې مربع د څلورو قایمو زاویو لرونکې او مستطیل هم څلور قایمې زاویې لري. اوس وواياست چې د هغو تر منځ توپیر څه شی دی؟

۲- د خپلې جوړې کړې قایمې زاویې څخه کار واخلئ او په لاندې شکلونو کې حاده، قایمه او منفرجه زاویې وښیاست.



۳- د خپلې قايمې جوړې کړې زاويې څخه په کار اخستنې سره دلاندې شکلونو زاويې اندازه کړئ او وواياست چې په هر شکل کې څو قايمې زاويې ليدل کيږي او دهغو حاده او منفرجه زاويې هم وښياست.




۴- په لاندې شکلونه کې څو حاده زاويې، څو منفرجه زاويې او څو قايمه زاويې ليدل کيږي.







د خپل تولګي او کورځينو اسبابونو ته ښه ځير شئ، په نوموړو اسبابو کې (حاده، قايمه او منفرجه) زاويې چې په نښه کړئ.

# یو دیرشم لوست

## خلاص او تړلي شکلونه

**هدف:** زده کوونکي به خلاص او تړلي شکلونه وپېژني او یو له بله سره یې توپیر او تشخیص کړي.

**فعالیتونه**

**پاملرنه وکړئ:**

دا یو خلاص شکل دی او دا یو تړلی شکل دی. دا یوه خلاصه منحني او دا یوه تړلې منحني ده.

۱- په لاندې شکلونو کې تړلي او خلاص شکلونه وښیاست.



۲- په لاندې شکلونو کې کوم یو خلاص او کوم یو تړلی دی؟



۳- الف: آیا مثلث خلاص شکل دی او که تړلی؟

ب: آیا مربع خلاص شکل دی او که تړلی؟

ج: آیا مستطیل خلاص شکل دی او که تړلی؟

د: آیا دایره خلاصه منحني ده او که تړلې؟

۴- د لاندې شکلونو څخه کوم یو تړلی او کوم یو خلاص دي؟



۵- هغه خلاص او تړلي شکلونه چې په خپل ټولګي کې وینئ وښیاست.

۶- د دریو قطعه خطونو او څلورو قطعه خطونو په واسطه خلاص او تړلې شکلونه رسم کړئ.




په خپله خوښه یو خلاص او یو تړلی شکل په خپلو کتابچو کې رسم او په بل درسی ساعت کې یې راوړئ.

# دوه دیرشم لوست

## د اوږدوالي اټکلي او دقیق اندازه کول

هدف: زده کوونکي د تضمین په مفهوم پوه شي او وکولای شي په دقیق توګه کمیتونه اندازه کړي.

**لومړی د لاندې هر قطعه خط اندازه تخمین کړئ او بیا د هر یوه اوږدوالی دخط کش په واسطه اندازه کړئ. په غور سره وګورئ چې ستاسو تخمین تر کومه حده واقعیت ته نژدې دی؟**

**د درکړل شوو قطعه خطونو د اټکلي او دقیق اندازه کولو وروسته مخامخ جدول بشپړ کړئ.**

| دقیق اندازه | اټکلي اندازه | ټوټه خطونه |
|---|---|---|
| | | الف ب |
| | | د ج |
| | | ن م |
| | | هـ و |
| | | ك ل |
| | | ز ر |

الف ـــــــــــــ ب

ج ـــــــــــــ د

م ـــــــــــــ ن

و ـــــــــــــ هـ

ل ـــــــــــــ ک

ر ـــــــــــــ ز

کورنۍ دنده

**زده کوونکي دې د پورتنیو قطعه خطونو اوږدوالی په نظر کې ونیسي، له اوږده قطعه خط څخه دې د لنډ قطعه خط خواته ترتیب او ولیکي.**




لاندې جدول ته پاملرنه وکړئ هرې ډلې ته دې د لاندې جدول په ډول يو جدول رسم کړي، د ډلو د يوه، يوه زده کوونکي قد دې په ترتيب سره د لومړی اټکل او وروسته دې په دقيقه توګه اندازه کړي.

| د هرې ډلې د زده کوونکو نومونه | د قد اندازه | |
|---|---|---|
| | اټکلي | دقيق |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |

هره ډله دې د اړوند جدول د بشپړولو وروسته په خپله د ډلې زده کوونکي پرتله کړي چې د کوم يوه زده کوونکي اټکل حقيقت ته ډير نژدې دی او هغه دې ياددابښت کړي، بيا دې لومړی تن د هرې ډلې سره پرتله شي په ډلو کې دې لومړی، دويم او دريم معلوم کړي او ممتاز زده کوونکي دې پيدا کړي.




هر زده کوونکی دې د خپل کور د يوې کوټې پراخوالی د خپلو قدمونو په واسطه اټکل او بيا دې په دقيقه توګه د متر په واسطه اندازه کړي، بيا دې توپير وليکي.

# دري دېرشم لوست

## د مربع، مستطیل او مثلث د محیط پیدا کول

**هدف:** زده کوونکي به د مربع، مثلث او مستطیل محیط اندازه کړای شي.

**لاندې شکل ته پاملرنه وکړئ:**




پورته شکل یو ترلی شکل دی که چیرې د (۱) له نقطې څخه وخوځېږو او د هغه په ټولو ضلعو باندې په ترتیب سره ولاړ شو او بیا د (۱) نقطې ته راورسېږو په حقیقت کې د مستطیل د ټولو ضلعو فاصله مو وهلې ده چې دا د مستطیل محیط بلل کېږي.

څرنګه چې د مستطیل مخامخ ضلعې یو له بل سره مساوي دي، نو د نوموړي مستطیل د ضلعو مجموعه ۱۲ سانتي متره=۲+۴+۲+۴ کېږي.

په دې صورت کې د راکړل شوي مستطیل محیط ۱۲ سانتي متره دی. څرنګه چې مربع هم ۴ مساوي ضلعې لري نو د مربع د څلورو واړو ضلعو داوږدوالي مجموعه د هغه محیط بلل کېږي او همدارنګه د مثلث د درې واړو ضلعو داوږدوالي مجموعه د هغه د محیط څخه عبارت دې.

## فعالیتونه

- په لاندې مستطیل کې د دوو ضلعو اوږدوالی درکړل شوی دی، د دوو نورو ضلعو اوږدوالی اندازه کړئ او محیط یې په لاس راوړئ.




- د خط کش او قایمې زاویې څخه استفاده وکړئ او یوه مربع رسم کړئ چې د هرې ضلعې اوږدوالی یې (۵) سانتي متره وي.




۱- که چیرې د یوې مربع هره ضلعه ۱۲ سانتي متره وي، د نوموړې مربع محیط پیدا کړئ.

۲- که چیرې د یوه تولګي اوږدوالی ۸ متره او سور یې ۴ متره وي محیط یې پیدا کړئ.

۳- د یوې مربع محیط چې د هرې ضلعې اوږدوالی یې ۴ سانتي متره دی، د هغه مستطیل له محیط سره یې پرتله کړئ چې اوږدوالی یې ٦ سانتي متره او سور یې ۲ سانتي متره وي.

۴- که چیرې د یوه مستطیل شکله بڼ اوږدوالی ۳۵۰ متره او سور یې ۲۳۰ متره وي، څو متره اغزن سیم ته اړتیا ده تر څو د بڼ محیط وتړي؟

۵- د یوې کوټې د فرشی اوږدوالی۴ متره او سور یې ۳ متره وي محیط پیدا کړئ؟

### کورنی دنده

د کاغذ له یوې پاڼې څخه داسې یو مستطیل جوړ کړئ چې اوږدوالي یې ۷ سانتي متره او سور یې ۳ سانتي متره وي، بیا د نوموړي مستطیل محیط حساب کړئ.




۱- په لاندې شکل کې څو مستطیلونه او څو مثلثونه دي، د هرې ضلعې اوږدوالی یې اندازه او محیطونه یې معلوم کړئ.



۲- په لاندې شکل کې د (ز) او (ح) نقطې او همدارنګه د (هـ) او (و) نقطې یو له بل سره ونښلوئ.




الف: څو مستطیلونه او څو مربع ګانې لیدلای شئ؟

ب : د هرې مربع محیط معلوم کړئ؟

ج : د هر مستطیل محیط معلوم کړئ.




که چیرې د یوه مثلث اضلاع په ترتیب سره ۷،۳ او ۵ سانتي متره وي محیط یې پیدا کړئ.

# نهم فصل
# د کتلې، وخت او مایعاتو اندازه کول

## څلور دیرشم لوست: د کتلې د اندازه کولو واحد (کیلوګرام)

**هدف:** زده کوونکي به د کتلې د اندازه کولو نړیوالو واحد وپیژني او په ورځني ژوند کې به ورڅخه کار واخستلی شي.

د تلې شکل ته وګورئ چې د هغې په یوه پله کې منې او پـه بلـه پلـه کـې د کیلوګرام وزنونه ایښودل شوي دي پاملرنه وکړئ.










**کیلوګرام:** د دې لپاره چـې د کتلـه لرونکـو شیانو پلورل او اخیستل په ځیـر تیـا سـره وشي، له هغو وزنونـو څخـه کـار اخیسـتل کیږي چې په ځای کې خلك ورسـره بلـدتیا ولري. د دې وزنونو ډېر نامتو وزن ۱ کیلـو ګرام دی چې په مخامخ شکلونو کې یې ښه لیدلی شئ.

د ۱ کیلو ګرام څخه زیات وزنونـه یعنـې ۲ کیلوګرامـه، ۵ کیلوګرامـه، ۱۰ کیلوګرامه او ۲۰ کیلوګرامه دي چې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې ورڅخه کار اخلي. د ډېرو کوچنیو شیانو داندازه کولو لپاره د کوچنیو وزنونو څخه چې هغه هم پیژندل شوي دي کار اخېستل کیږي.

**لاندې شکلونو ته پاملرنه وکړئ، درانه او سپک وزنونه په ترتیب سره په خپلو کتابچو کې ولیکئ.**




**زده کوونکي: ښاغلیه ښوونکیه! گرام څه شی دی؟**

**ښوونکی: ۱ گرام په تقریبي ډول د ۱۰ عدسو (نسکو) په اندازه دی.**

**زده کوونکی: ښاغلیه ښوونکیه! نو ۱ کیلو گرام څو گرامه دی؟**

**ښوونکی: گرانو زده‌کوونکو! باید پوه شئ چې ۱ کیلو گرام له ۱۰۰۰ گرامه سره مساوي دي.**






۱- که چېرې د ۱ کیلو گرام وزن ونه لرئ څرنگه کولی شئ د نورو وزنونوپه کارولو سره یو کیلو گرام منې اندازه کړئ؟

۲- د >، = او < نښو څخه کار واخلئ او تش ځایونه په مناسبو نښو سره ډك كړئ؟

| | | |
|---|---|---|
| ۵ کیلو گرامه | ☐ | ۵۰۰۰ گرامه |
| ۵۰۰۰ گرامه | ☐ | ۱۰۰ گرامه+ ۲۰۰ گرامه+۴۰۰ گرامه |
| یو ۵۰ گرامه او درې ۲۰ گرامه | ☐ | ۱۰۰ گرامه |
| ۵۰۰ گرامه | ☐ | نیم کیلو گرام |
| ۵۰۰ گرامه | ☐ | دوه ۲۰۰، گرامه ، یوه ۵۰ گرامه او دوه ۲۰ گرامه |
| ۷ کیلو گرامه کچالو | ☐ | ۷۰۰۰ گرامه یوه بوجۍ پنبه |

۳- یوه هټۍ وال د تلې په یوه پله کې د ۵ کیلو گرامو یو وزن او په بله کې یې یوه دانه هندوانه کېښوده او ویې لیدل چې هندوانه سپکه ده. نو کله چې د تلې په بله پله کې یې د ۱ کیلو گرام وزن کېښود تله د تعادل حالت ته راغله، وواياست چې د هندوانې دروندوالی څومره دی؟






زده کوونکي دې له ډبیو څخه تله جوړه کړي او تولگي ته دې راوړي.










**زده کوونکی**: ډېر درانده شیان د څه شي په واسطه اندازه کوي؟

**ښوونکی**: ګرانو زده‌کوونکو! ډېر زیات درانده شیان لکه: بار لرونکي موټرونه او نور د ټن په واسطه اندازه کیږي.

**زده کوونکی**: یو ټن څومره وزن دی.

**ښوونکی**: یو کیلو ګرام مو وپېژنده باید پوه شئ چې ۱۰۰۰ کیلو ګرامه یو ټن کیږي.

۱۰۰۰ کیلو ګرامه = ۱ ټن

۲۰۰۰ کیلو ګرامه = ۲×۱۰۰۰ = ۲ ټن




که چیرې یو موټر د بار سره ۲۰ ټن وزن ولري او د موټر وزن ۵ ټنه وي، د موټر د بار وزن پیدا کړئ.

# پنځه دېرشم لوست

## د وخت د اندازه کولو واحد (ساعت)

**هدف:** زده کوونکي به ساعت وپيژني، د ساعت ښودونکي، دقيقه ښودونکي او ثانيه ښودونکي په موقعيت سره وخت تشخيص او ولوستلای شي.




## د ساعت په واسطه دوخت ښودل

د ساعت په مخ باندې چې په عمومي توگه يوه دايره وي شکل لري ۱۲ عددونه په معلومو ځايونو کې وينئ، د هرو دوارو عددونو په منځ کې ۵ واړه خطونه يا نقطې دي، کوم وخت چې ثانيه ښودونکی له يوه عدد څخه پيل وکړي او يوه بشپړه دوره ووهي دقيقه ښودونکی له يوې نقطې څخه بلې نقطې ته رسيږي، ويل کيږي چې يوه دقيقه تيره شوې ده. که چيرې دقيقه ښودونکی له يوه عدد څخه په حرکت پيل وکړي د يوې بشپړې دورې وهلو وروسته يعنې له ۶۰ نقطو يا خطونو څخه تير شي چې په حقيقت کې ۶۰ دقيقې يا يو ساعت تير شوی دی، په دې صورت کې د ساعت ښودونکي عقربه له يوه عدد څخه بل عدد ته رسيږي نو په دې صورت کې ليکلی شو چې:

**۶۰ دقيقې = ۱ ساعت**

**۶۰ ثانيې = ۱ دقيقه**







**د ساعت لوستل** ب الف

که چېرې د الف د شکل ساعت ته پاملرنه وکړئ، ليدل کيږي چې دقيقه ښودونکی د ۱۲ د عدد مخامخ او ساعت ښودونکی د ۴ د عدد په مقابل کې قرار لري، داسې لوستل کيږي چې ساعت ۴ بجې دي او يا داسې ۴:۰۰.
اوس که چيرې دقيقه ښودونکی له ۱۲ څخه حرکت وکړي، لکه د (ب) شکل د ۳ د عدد په مقابل کې قرار ونيسي. د ساعت ښودونکی ځای هم د ۴ رقم څخه بدلون کوي، په دې حالت کې ساعت داسې لوستل کيږي. له څلورو څخه پنځلس دقيقې تيرې دي. يا ۴:۱۵ يا پنځلس د پاسه ۴ بجې دي.

## فعاليتونه

۱. لاندې شکلونو ته ځير شئ، وختونه لکه د ښي خوا د ساعت وختونه په دوو طريقو سره په خپلو کتابچو کې وليکئ.






| | | | |
|---|---|---|---|
| ۳:۴۵ | ______ | ______ | ______ |
| ۱۵ پاتې ۴ ته | ______ | ______ | ______ |




۱- مخامخ شکل په خپلو کتابچو کې رسم کړئ.



ساعت ته ځیر شئ. د ۵، ۱۰ او ۱۵ عددونو په څېر په ترتیب د ۵، ۵ په زیاتولو سره د ساعت د نورو عددونو مقابل عددونه ولیکئ.

۲- وواياست هر یو ساعت کوم وخت ښيي، ساعتونه په پام کې ونیسئ د هر ساعت وخت په خپلو کتابچو کې ولیکئ.


الف


ب


ج




د ساعتونو ، دقیقو، ثانیو د ښودنکو په پام کې نیولو سره وختونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.


د


هـ


و

# مشق او تمرین






۱. پورتنی شکلونه کوم وختونه راښیي؟

۲. یو له بله څه توپیر لري؟

۳. ساعت ښودنکی او دقیقه ښودنکی یو له بل سره څه توپیر لري؟

۴. د ساعت مخ په څو مساوي برخو ویشل شوی دی؟

۵. که چیرې د ساعت ښودنکي عقربه د ۳ د عدد مخامخ او دقیقه ښوونکي عقربه د ۲ د عدد مخامخ وي، کوم وخت راښیي؟

۶. په ساعت کې د ۲ او ۳ دوو عددونو تر منځ څو دقیقې دي



## فعالیتونه

لاندې ساعتونه د په توگه درکړل شوي دي.
د هر ساعت لاندې تش ځای کې اړوند وخت په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

  

د پورته ساعتونو رسمونو ته پاملرنه وکړئ او ځوابونه یې وواياست.

الف: درې واړه ساعتونه یو له بل سره څه توپیر لري؟

ب: که چیرې دقیقه ښودونکی د ۱۲ له عدد څخه د ۲ عددته ورسیږي نوموړي ساعتونه کوم وخت ښیي؟

ج: که چیرې دقیقه ښودونکی له ۱۲ څخه حرکت وکړي او د ٦ عدد ته ورسیږي، په پورتنیو شکلونو کې ساعتونه څو بجې راښیي.

د: که چیرې دقیقه ښودونکی د ۱۲ له عدد څخه حرکت وکړي او یوه بشپړه دوره ووهي، بیا د ۱۲ عدد ته را ورسیږي، هر یو ساعت کوم وخت راښیي؟

 

۱۰ پاتې ۵ ته




لاندې عبارتونه بشپړ کړئ او د ساعتونو عقربې په خپلو کتاپچو کې رسم کړئ.



۱. زه له خوبه په............................ بجو وېښېږم.



۲. زموږ ښوونځی په........................ بجو پیل کیږي.



۳. زه د غرمې ډوډی په...................... بجو خورم.



۴. زه په........................بجو کورنۍ دنده سرته رسوم.



۵. زه په........................ بجو له ښوونځي څخه رخصت کیږم.




زده کوونکي دې د یوه ساعت موډل له کاغذ څخه قیچي کړي او د مازدیگر د لمانځه وخت دې په هغه کې وښيي.

# شپږ دېرشم لوست

## ورځ، اونۍ ، میاشت او کال

هدف: زده کوونکي به وکړای شي، ورځ، اونۍ، میاشت او کال وپېژني.



| | | |
|---|---|---|
| ۲۴ ساعته | = | یوه شپه او ورځ |
| ۷ شپې او ورځې | = | یوه اونۍ |
| ۴ (اونۍ) | = | یوه میاشت |
| ۳۰ شپې او ورځې | = | یوه میاشت |
| ۱۲ میاشتې | = | یو کال |
| ۳۶۵ شپې او ورځې | = | یو کال |
| ۴ فصله | = | یو کال |




لاندې تش ځایونه د حل شوي مثال په توګه په مناسبو عددونو ډک کړئ.

مثال:

یوه میاشت __۳۰__ شپې او ورځې ده.

یو کال ______ شپې او ورځې دی.

یوه اونۍ ______ شپې او ورځې ده.

یوه میاشت ______ اونۍ ده.

یو کال ______ میاشتې دي.

# اووه دېرشم لوست

## د کلیزې یا جنتري پېژندنه

هدف: زده کوونکي به کلیزې یا جنتري وپېژني او د هغې څخه کار واخستلی شي.

### حمل - وری ۱۳۸۵

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۴ | ۳ | ۲ | ۱ | | | |
| ۱۱ | ۱۰ | ۹ | ۸ | ۷ | ۶ | ۵ |
| ۱۸ | ۱۷ | ۱۶ | ۱۵ | ۱۴ | ۱۳ | ۱۲ |
| ۲۵ | ۲۴ | ۲۳ | ۲۲ | ۲۱ | ۲۰ | ۱۹ |
| | ۳۱ | ۳۰ | ۲۹ | ۲۸ | ۲۷ | ۲۶ |

### ثور - غویی ۱۳۸۵

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | | | | | ۳۱ | ۳۰ |
| ۸ | ۷ | ۶ | ۵ | ۴ | ۳ | ۲ |
| ۱۵ | ۱۴ | ۱۳ | ۱۲ | ۱۱ | ۱۰ | ۹ |
| ۲۲ | ۲۱ | ۲۰ | ۱۹ | ۱۸ | ۱۷ | ۱۶ |
| ۲۹ | ۲۸ | ۲۷ | ۲۶ | ۲۵ | ۲۴ | ۲۳ |

### جوزا - غبرگولی ۱۳۸۵

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۵ | ۴ | ۳ | ۲ | ۱ | | |
| ۱۲ | ۱۱ | ۱۰ | ۹ | ۸ | ۷ | ۶ |
| ۱۹ | ۱۸ | ۱۷ | ۱۶ | ۱۵ | ۱۴ | ۱۳ |
| ۲۶ | ۲۵ | ۲۴ | ۲۳ | ۲۲ | ۲۱ | ۲۰ |
| | | ۳۱ | ۳۰ | ۲۹ | ۲۸ | ۲۷ |

### سرطان چنگاښ ۱۳۸۵

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۲ | ۱ | | | | | ۳۱ |
| ۹ | ۸ | ۷ | ۶ | ۵ | ۴ | ۳ |
| ۱۶ | ۱۵ | ۱۴ | ۱۳ | ۱۲ | ۱۱ | ۱۰ |
| ۲۳ | ۲۲ | ۲۱ | ۲۰ | ۱۹ | ۱۸ | ۱۷ |
| ۳۰ | ۲۹ | ۲۸ | ۲۷ | ۲۶ | ۲۵ | ۲۴ |

### اسد - زمری ۱۳۸۵

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۶ | ۵ | ۴ | ۳ | ۲ | ۱ | |
| ۱۳ | ۱۲ | ۱۱ | ۱۰ | ۹ | ۸ | ۷ |
| ۲۰ | ۱۹ | ۱۸ | ۱۷ | ۱۶ | ۱۵ | ۱۴ |
| ۲۷ | ۲۶ | ۲۵ | ۲۴ | ۲۳ | ۲۲ | ۲۱ |
| | | | ۳۱ | ۳۰ | ۲۹ | ۲۸ |

### سنبله وږی ۱۳۸۵

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳ | ۲ | ۱ | | | | |
| ۱۰ | ۹ | ۸ | ۷ | ۶ | ۵ | ۴ |
| ۱۷ | ۱۶ | ۱۵ | ۱۴ | ۱۳ | ۱۲ | ۱۱ |
| ۲۴ | ۲۳ | ۲۲ | ۲۱ | ۲۰ | ۱۹ | ۱۸ |
| ۳۱ | ۳۰ | ۲۹ | ۲۸ | ۲۷ | ۲۶ | ۲۵ |

## میزان - تله ۱۳۸۵

September – October 2006 | ۱۴۲۷

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۷ 29 | ۶ 28 | ۵ 27 | ۴ 26 | ۳ 25 | رمضان المبارک ۲ 24 | ۱ 23 |
| ۱۴ 6 | ۱۳ 5 | ۱۲ 4 | ۱۱ 3 | ۱۰ 2 | ۹ October | ۸ 30 |
| ۲۱ 13 | ۲۰ 12 | ۱۹ 11 | ۱۸ 10 | ۱۷ 9 | ۱۶ 8 | ۱۵ 7 |
| ۲۸ 20 | ۲۷ 19 | ۲۶ 18 | ۲۵ 17 | ۲۴ 16 | ۲۳ 15 | ۲۲ 14 |
| | | | | | ۳۰ 22 | ۲۹ 21 |

## عقرب - لرم ۱۳۸۵

October – November 2006 | ۱۴۲۷

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۵ 27 | ۴ 26 | ۳ 25 | شوال المکرم ۲ 24 | ۱ 23 | | |
| ۱۲ 3 | ۱۱ 2 | ۱۰ November | ۹ 31 | ۸ 30 | ۷ 29 | ۶ 28 |
| ۱۹ 10 | ۱۸ 9 | ۱۷ 8 | ۱۶ 7 | ۱۵ 6 | ۱۴ 5 | ۱۳ 4 |
| ۲۶ 17 | ۲۵ 16 | ۲۴ 15 | ۲۳ 14 | ۲۲ 13 | ۲۱ 12 | ۲۰ 11 |
| | | | ۳۰ 21 | ۲۹ 20 | ۲۸ 19 | ۲۷ 18 |

## قوس - لیندی ۱۳۸۵

November – December 2006 | ۱۴۲۷

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳ 24 | ۲ 23 | ذوالقعده الحرام ۱ 22 | | | | |
| ۱۰ December | ۹ 30 | ۸ 29 | ۷ 28 | ۶ 27 | ۵ 26 | ۴ 25 |
| ۱۷ 8 | ۱۶ 7 | ۱۵ 6 | ۱۴ 5 | ۱۳ 4 | ۱۲ 3 | ۱۱ 2 |
| ۲۴ 15 | ۲۳ 14 | ۲۲ 13 | ۲۱ 12 | ۲۰ 11 | ۱۹ 10 | ۱۸ 9 |
| | ۳۰ 21 | ۲۹ 20 | ۲۸ 19 | ۲۷ 18 | ۲۶ 17 | ۲۵ 16 |

## جدی - مرغومی ۱۳۸۵

December 2006 – January 2007 | ۱۴۲۷ – ۱۴۲۸

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ذوالحجه الحرام ۱ 22 | | | | | | محرم الحرام ۳۰ 20 |
| ۸ 29 | ۷ 28 | ۶ 27 | ۵ 26 | ۴ 25 | ۳ 24 | ۲ 23 |
| ۱۵ 5 | ۱۴ 4 | ۱۳ 3 | ۱۲ 2 | ۱۱ January | ۱۰ 31 | ۹ 30 |
| ۲۲ 12 | ۲۱ 11 | ۲۰ 10 | ۱۹ 9 | ۱۸ 8 | ۱۷ 7 | ۱۶ 6 |
| ۲۹ 19 | ۲۸ 18 | ۲۷ 17 | ۲۶ 16 | ۲۵ 15 | ۲۴ 14 | ۲۳ 13 |

## دلو - سلواغه ۱۳۸۵

January – February 2007 | ۱۴۲۸

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۶ 26 | ۵ 25 | ۴ 24 | ۳ 23 | ۲ 22 | ۱ 21 | |
| ۱۳ 2 | ۱۲ February | ۱۱ 31 | ۱۰ 30 | ۹ 29 | ۸ 28 | ۷ 27 |
| ۲۰ 9 | ۱۹ 8 | ۱۸ 7 | ۱۷ 6 | ۱۶ 5 | ۱۵ 4 | ۱۴ 3 |
| ۲۷ 16 | ۲۶ 15 | ۲۵ 14 | ۲۴ 13 | ۲۳ 12 | ۲۲ 11 | ۲۱ 10 |
| | | | | صفر المظفر ۳۰ 19 | ۲۹ 18 | ۲۸ 17 |

## حوت - کب ۱۳۸۵

February – March 2007 | ۱۴۲۸

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۴ 23 | ۳ 22 | ۲ 21 | ۱ 20 | | | |
| ۱۱ 2 | ۱۰ March | ۹ 28 | ۸ 27 | ۷ 26 | ۶ 25 | ۵ 24 |
| ۱۸ 9 | ۱۷ 8 | ۱۶ 7 | ۱۵ 6 | ۱۴ 5 | ۱۳ 4 | ۱۲ 3 |
| ۲۵ 16 | ۲۴ 15 | ۲۳ 14 | ۲۲ 13 | ۲۱ 12 | ۲۰ 11 | ۱۹ 10 |
| | | | ربیع الاول ۲۹ 20 | ۲۸ 19 | ۲۷ 18 | ۲۶ 17 |






۱- د چنگاښ د میاشتې د ورځو تش ځایونه د جنترې له مخې ډك كړئ.

**سرطان - چنګاښ ۱۳۸۵**

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۲ 23 | ۱ 22 | | | | | ۳۱ 22 |
| ۹ 30 | ۸ 29 | ۷ 28 | ۶ 27 | | ۴ 25 | ۳ 24 |
| ۱۶ 7 | ۱۵ 6 | | | ۱۲ 3 | ۱۱ 2 | ۱۰ July |
| ۲۳ 14 | ۲۲ 13 | | ۲۰ 11 | ۱۹ 10 | | |
| | | ۲۸ 19 | ۲۷ 18 | | | ۲۴ 15 |

۲- د جنترۍ له مخې د كال كومې میاشتې ۳۱ ورځې دي؟

............ ............ ............ ............ ............ ............

۳- د كال كومې میاشتې ۳۰ ورځې دي؟

............ ............ ............ ............ ............ ............

۴- د كال كومې میاشتې ۲۹ ورځې دي؟

............ ............ ............ ............ ............ ............

۵- په جنترۍ كې د زمرې د میاشتې ۲۸ نېټه د اونۍ له كومې ورځې سره سمون لري؟

............ ............ ............ ............ ............ ............

۶- د زمري د میاشتې د چهارشنبې په ورځ کوم، کوم تاریخونه دي؟

۷- د اونۍ ورځې د جنتري له مخې ولیکئ.

۸- د کال د میاشتو نومونه په ترتیب سره د جنتري له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.




زده کوونکي دې هر یو د پلار او مور په مرسته د خپلو زیږیدلو، کال، میاشت او ورځ په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# اته دېرشم لوست

## د مايعاتو د اندازه کولو واحد (ليتر)

هدف: زده کوونکي به پوه شي چې په ورځني ژوند کې مايعات په ليتر باندې اندازه کيږي.



پوښتنې:

١. څوك ويلى شي چې تېل په څه شي اندازه کيږي؟
٢. شيدې د څه شي په واسطه اندازه کيږي؟
٣. اوبه د څه شي په واسطه اندازه کوی؟



گرانو زده‌کوونکو! که چيرې ځير شوي ياست د تېلو په گيلنو، په مايع دواگانو، د اوبو په بوشکو او په مايع غوړيو باندې د ليتر کلمه ليکل شوې وي.

نو بايد پوه شئ چې مايعات د ليتر په واسطه اندازه کيږي، که چيرې ۴ معمولي گيلاسه اوبه په يوه لوښي او يا يوه جك کې واچوو نو تقريباً يو ليتر اوبه کيږي.

تاسو کولای شئ چې ددغه ۴ معمولي گيلاسو اوبو مقدار، د يوه ليتر په توگه و منئ، دتيلو، شيدو، مايع غوړيو او اوبو په اخيستلو او پلورلو کې د ليتر څخه کار واخلئ دېر تيل پلورونکي سر خلاصى بوتل او يا گيلن په نښه کوي، په پلورلو او اخيستلو کې له هغو څخه د مايعاتو د واحد په توگه کار اخلي.






۱- څو گیلاسه اوبه یو لیتر کیږي؟

۲- ۲ گیلاسه اوبه څو لیتره کیږي؟

۳- که چیرې د یوه لیتر تیلو بیه ۲۵ افغانۍ وي، د ۵ لیترو تیلو بیه څو افغانۍ کیږي؟

۴- که چیرې د دوو گیلاسه شیدو بیه ۲۰ افغانۍ وي، یو لیتر شیدې څو افغانۍ کیږي؟

۵- د وه لیتره اوبه څو گیلاسه کیږي؟

۶- د (اُ، آر، اِس) په پاکټونو باندې لیکل شوي دي چې په یوه لیتر اوبو کې حل او کار ورڅخه واخلئ، که چیرې د لیتر اندازه ونه لرئ، د گیلاسونو په واسطه څرنگه لیتر اندازه کوئ؟

۷- د =، > او < نښو څخه په کار اخیستنې د لاندې لوښو ظرفیت پرتله کړئ.




ب ☐ الف      الف ☐ ت      ب ☐ ت      ب ☐ ث




زده کوونکي دې د (اُ، آر، اس) د پاکټونو د حل کولو له پاره د یوه لیتر اندازه کول، د گیلاسونو په واسطه خپلو کورنیو ته وښیي.

# نهه دېرشم لوست

## د یوه رقمي عددونو ضرب کول په څو رقمي عددونو کې

هدف: زده کوونکي به وکړای شي چې یو رقمي عددونه په څو رقمي عددونو کې ضرب کړي.

ګرانو زده‌کوونکو! تاسو مخکې د یو رقمي عددونو ضرب کول په دوه رقمي عددونو کې زده کړي دي.

اوس غواړو چې د ۲۱۴ درې رقمي عدد ٦ په عدد کې ضرب کړو.

**لومړی:** د ٦ عدد د عدد د یویزو په رقم کې چې ۴ دی ضربوو.




(٦ × ۴=۲۴)

د ۲۴ د عدد د یویز رقم هم چې ۴ دی د ضرب د حاصل د یویزو په مرتبه کې لیکو او د ۲۴ د لسیز رقم چې ۲ دی، د ۲۱۴ د عدد د لسیزو د مرتبې په سر لیکو.

**دویم:** د ٦ عدد د عدد د لسیزو په رقم کې چې (۱) دی ضرب کوواو د ۲ رقم سره چې حاصل نیول شوی دی جمع کوو.

(٦ × ۱) +۲=۸

یا ٦ + ۲ = ۸

چې د ۸ عدد حاصل کیږي او د ضرب د حاصل د لسیزو په مرتبه کې یې لیکو.

**دریم:** د ٦ عدد د عدد په سلیزوکې چې ۲ دی ضربوو ۱۲=(۲ × ٦) کیږي د ۱۲ د عدد د ۲ رقم د ضرب د حاصل د سلیزو په مرتبه کې او د (۱) رقم یې د زریزو په مرتبه کې لیکو او د ۱۲۸۴ عدد په لاس راځي.

**کورنی دنده**

د ۷۰۲ عدد په ۴ کې ضرب کړي.




۱- د ۱۱۲ عدد د ۹ په عدد کې ضرب کړئ.

۲- د ۴۰۸ عدد د ۷ په عدد کې ضرب کړئ.

۳- د ۳۰۰ عدد د ۸ په عدد کې ضرب کړئ.

۴- لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۶۵۴ × ۷ | ۷۴۵ × ٦ | ۳۴۱ × ۵ |

۵- له لاندې مثال نه په ګته اخستنې سره لاندې پوښتنې حل کړئ.



مثال :

$$\begin{array}{r} ۳۸۷۲ \\ \times \quad ۸ \\ \hline ۳۰۹۷٦ \end{array}$$

| | | |
|---|---|---|
| ۹٦۰۴ × ۷ | ٦۰۰۲ × ۸ | ۱۲۸۴ × ۵ |

٦- لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۷۳۲ × ٦ | ۵۱۴ × ۷ | ۱۱۷۸ × ۵ | ۷۰۴۳ × ۸ |




لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۷۴ × ۴ | ٦۰۰۲ × ۹ | ۹۰۴۴ × ۸ |

## څلويښتم لوست:

# د دوه رقمي عددونو ضربول په دوه رقمي عددونو کې

هدف: زده کوونکي به وکړای شي چې دوه رقمي عددونه په دوه رقمي عددونو کې ضرب کړي.

**مثال: غواړو د ۲۳ عدد د ۱٦ په عدد کې ضرب کړو.**

**لومړی:**

**د ۱٦ د عدد ديويزو مرتبه چې د ٦ عدد دی د يوه رقمي او دوه رقمي عددونو د ضرب په ډول سره ضربوو چې د ضرب حاصل يې ۱۳۸ کيږي.**

```
   ۲۳
×  ۱٦
-----
  ۱۳۸
```

**دويم:**

**د ۱٦ د عدد لسيز مرتبه چې د ۱ عدد دی د ۲۳ په عدد کې ضربوو چې په حقيقت کې د ۱۰ ضربول په ۲۳ کې دی چې د ضرب د حاصل د ۳ رقم يې د لسيزو د مرتبې لاندې او د ۲ رقم يې د سليزو د مرتبې لاندې ليکو، په پای کې د ۱۳۸ او ۲۳ د جمعې حاصل په لاس راوړو، په نتيجه کې د ۳٦۸ عدد حاصل کيږي چې د ۱ د ۱٦ او ۲۳ عددونو د ضرب حاصل دی.**

```
   ۲۳
×  ۱٦
-----
  ۱۳۸
+ ۲۳
-----
  ۳٦۸
```




**لاندې پوښتنې حل کړئ.**

| | | |
|---|---|---|
| ۲۵ × ۱۱ | ۱۹ × ۱۳ | ۱۵ × ۲۱ |

ددې له پاره چې صفر لرونکي عددونه په اسانۍ سره ضرب کړای شو، لاندې مثال په نظر کې نیسو.

$$۴۰ \times ۳۰ = ?$$

**لومړۍ حالت:**

```
   ۴۰
×  ۳۰
------
   ۰۰
+۱۲۰
------
 ۱۲۰۰
```

**دویم حالت:**

$۴۰ \times ۳۰ = ?$

په دې حالت کې د عددونو صفرونه په نظر کې نه نیسو، یوازې د ۳ او ۴ رقمونه یو له بل سره ضربوو یعنې $(۴ \times ۳ = ۱۲)$

بیا د ضرب د دواړو اجزاو د صفرونو په شمېر صفرونه د ضرب د حاصل مخې ته لیکو، لکه: $۴۰ \times ۳۰ = ۱۲۰۰$




لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

```
   ۸۰        ۹۸        ۶۳۰
×  ۷۰     ×  ۶۰     ×   ۴۰
------    ------    -------
                     ۲۵۲۰۰

   ۳۰۰       ۱۰۰۰
×   ۷۰     ×  ۱۰۰
------    -------
```




۱. د لاندې عددونو د ضرب حاصل په لاس راوړئ.



الف : ۳۰ او ۴۰ — ذ : ۱۰ او ۲۰۰

ب : ۶۱ او ۹۰ — ر : ۶۳ او ۱۰۰

د : ۶۰ او ۳۰۰ — ز : ۱۷۲او ۸۰

۲. د ضرب د حاصل په کارولو سره لاندې تش ځایونه د حل شوي مثال په ډول د صفرونو په شمیر سره ډك کړئ.

مثال: ۴۲۰۰= [ ۰ ] ۶۰×۷

ج: ۴۰۰۰= [ ] ۸ × [ ] ۵ — الف: ۴۲۰۰= [ ] ۷۰×۶

د: ۷۳۰۰= ×۷۳ [ ] ۱ — ب: ۶۵۰= [ ] ۶۵×۱

هـ: ۲۰۰= [ ] ۴×۵

۳. څو دوه رقمي عددونه چې د هغو ښی خواته صفر وي ولیکئ، بیا یې یو له بله سره ضرب کړئ او د ضرب حاصل یې لاس ته راوړئ.

۴ - لاندې پوښتنو ته په شفاهي توګه ځواب ووایاست.




۵- الف: د لاندې شکل له مخې د ضرب یوه پوښتنه ولیکئ او په هغه باندې د ضرب عملیه سرته ورسوئ.




____ × ____ = ____

ب: لاندې عددونو ضرب کړئ او په شکل کې وښیاست.

۳ × ۱۰ =?

کورنۍ دنده

۱. لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۳۱ | ۶۳ | ۹۵ | ۸۰ |
| × ۲۲ | × ۳۵ | × ۲۷ | × ۴۰ |






## يوڅلويښتم لوست:

# د دوه رقمي عددونو ضرب په درې رقمي عددونو کې

هدف: زده کوونکي به وکړای شي چې دوه رقمي عددونه په درې رقمي عددونو کې ضرب

تاسو په تيرو لوستونو کې ديو رقمي او دوه رقمي عددونو ضرب له دوه رقمي عددونو سره زده کړی او د هغه په طريقه باندې پوه شوي ياست، اوس درې رقمي عددونه له دوه رقمي عددونو سره ضربوو.

مثال: غواړو چې د ۷۶۵ عدد د ۵۸ له عدد سره ضرب کړو.

```
   ۷۶۵
 × ۵۸
 ------
  ۶۱۲۰
+ ۳۸۲۵
 ------
 ۴۴۳۷۰
```

لومړی د۵۸ د عدد د يويزو رقم يعنې ۸ د ۷۶۵ په عدد کې ضربوو چې د۶۱۲۰ عدد په لاس راځي بيا د ۵۸ د عدد د لسيزو رقم يعنې ۵ په ۷۶۵ عددکې ضربوو چې د ۳۸۲۵ عدد حاصليږي، ددې عدد د يويز رقم د ۶۱۲۰ د عدد د لسيزو تر مرتبې لاندې ليکو، په پای کې دواړه لاس ته راغلي عددونه يوله بله سره جمع کوو چې د ۴۴۳۷۰ عدد لاس ته راځي.

## فعاليتونه

لاندې درکړل شوي عددونه يو له بله سره ضرب کړئ.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۹۰۰ | ۸۴۰ | ۲۰۸ | ۱۳۶ | ۶۰۱ | ۷۲۵ | ۹۱۰ |
| ۷۱ × | ۶۷ × | ۹۶ × | ۲۷ × | ۱۴ × | ۲۰ × | ۶۲ × |

کورنی دنده

| | |
|---|---|
| ۷۲۵ | ۹۱۰ |
| ۲۰ × | ۶۲ × |






۱. لاندې درکړل شوي عددونه یو له بل سره ضرب کړئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۷٦۴ | ۱۷۳ | ۱۰۱ | ۹۰۰ |
| ۷۳ × | ٦۴ × | ۷۳ × | ۱۰ × |
| | | | |
| ۷۰۴ | ۱۰۲ | ۱۹۸ | ٦۸۷ |
| ٦۲ × | ۴۴ × | ۸۷ × | ۹۸ × |

۲. که چیرې د یوې نکلي چاینکې بیه ۱۵۷ افغانۍ وي، د یوه درجن (۱۲ دانو)

۳. بیه به څو افغانۍ وي؟

۴. که چیرې د یوه صندوق مڼو بیه ۲۱۸ افغانۍ وي، د ۹۰ صندوقونو بیه معلومه کړئ؟

۵. شریف د یوې څغاستې په سیالۍ کې ٦۰ متره لاره په یوه دقیقه کې وهي معلوم کړئ چې په یوه ساعت کې به څو متره لاره ووهي؟

۶. د یوه قطي ګوګړو بیه یوه افغانۍ ده،د یوه درجن (۱۲ قطیو) بیه څو افغانۍ کیږي؟

۷. د یوه کیلو ګرام غوړیو بیه ۴۰ افغانۍ ده، د ۱۲ کیلو ګرامه غوړیو بیه څو افغانۍ کیږي؟

۸. یو پلورونکی په یوه ورځ کې ۲۰۰ افغانۍ ګټه لري او په یوه ورځ کې ۱۹۰ افغانۍ خرڅ لري، معلوم کړئ چې په یوه میاشت کې څو افغانۍ سپمولای شي؟




۱- که چیرې یوه کورنۍ په یوه ورځ کې ۱۰۰ گرامه بوره مصرف کړي، معلوم کړئ چې په یوه میاشت کې به څو گرامه بوره مصرف کړي؟

۲- یو تن په یوه شپه او ورځ کې ۳۲ رکعته لمونځ کوي، په یوه میاشت کې به څو رکعته لمونځ وکړي؟



# لسم فصل

# تقسیم

## دوه څلويښتم لوست: د تقسیم عملیه

**هدف**: زده کوونکي به د تقسیم په مفهوم باندې پوه شي او به وکولی شي چې د تقسیم د عملیې په واسطه خپلې ورځینۍ ستونزې حل کړي.

### فعالیت

- درې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته ودرېږي.
- ښاغلی ښوونکی دې ۱۲ دانې لوبیاوې، ورې ډبرې او یا نور محیطي مواد په لاس کې ونیسي. په لومړي وار دې هر زده کوونکي ته یوه، یوه دانه لوبیا ورکړي.
- دویم وار دې له پاتې شویو ۹ دانو څخه یوه، یوه دانه هر زده کوونکي ته ورکړي. $12-3=9$
- دریم وار دې له ٦ پاتې شوو دانو څخه یوه، یوه دانه هر زده کونکي ته ورکړي. $9-3=6$
- څلورم وار دې له ۳ پاتې شوو دانو څخه یوه، یوه دانه هر زده کوونکي ته ورکړي. $6-3=3$ ، $3-3=0$

په پای کې:

- هر زده کونکي ته څو دانې لوبیا وې یا نور مواد رسیدلي دي؟
- د تفریق عملیه څو وارې سرته رسول شوې ده؟
- د څو وارې ۳ له ضرب کولو څخه د ۱۲ عدد لاس ته راځي.
- په ټولو حالاتوکې مو ولیدل چې د ۱۲ له عدد څخه ۳ څلور وارې تفریق شوی او یا ۳ څلور وارې د ۱۲ په عدد کې شامل دی،د تفریق دا تکراري عملیه د تقسیم په توګه داسې لیکو:

$$12 \div 3 = 4$$

مقسوم ← ۱۲ ، مقسوم علیه ← ۳ ، د تقسیم حاصل ← ۴

باید پوه شو چې د ۱۲ عدد دمقسوم، د ۳ عدد مقسوم علیه او د ۴ عدد د تقسیم د حاصل یا خارج قسمت په نامه یادیږي.




۱. د درکړل شوي شکل له مخې د ویش ځواب ولیکئ.



۱۲÷۴=

۲. په خپلو کتابچو کې په تشو ځایونو کې مناسب عددونه ولیکئ او په هغه کې مقسوم، مقسوم علیه او خارج قسمت وښیاست.




۳. دپورته شکل له حل شوې پوښتنې څخه په ګټې اخیستنې سره لاندې تش ځایونه په مناسبو عددونو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.






۱. **د تقسيم د حاصل يا (خارج قسمت) د پيدا کولو لپاره د حل شوي مثال په ډول د تفريق عمليه سرته ورسوئ او ځواب يې وليکئ.**

مثال:

۱۵÷۵=

۱۵ ۵-۱۰ ---۱۰ ۵-۵ ---۵ ۵-۰

۱۵÷۵-۳

۲۴÷۸=؟

۲. **د عددونو د خط په مرسته دحل شوي مثال په ډول د تفريق عمليې سرته ورسوئ.**













**د عددونو د خط په مخ باندې د ?=۴÷۱٦ افادې د تقسيم حاصل په لاس راوړئ.**

# درېِ څلویښتم لوست:

## د دوه رقمي عددونو تقسیم په یوه رقمي عددونو باندې

هدف : زده کوونکي به وکړای شي دوه رقمي عددونه په یو رقمي عدد باندې تقسیم کړي.

لومړی مثال: غواړو د ۹۸ عدد په ۷ باندې وویشو،لیدل کیږي چې د مقسوم د کیڼې خوا رقم یعنې ۹ د مقسوم علیه یعنې د ۷ څخه لوی دی او په هغه باندې ویشل کیږي چې خارج قسمت یې (۱) دی، هغه په ۷ کې ضربوو او د ضرب حاصل یې تر ۹ لاندې لیکو او تفریق کوو یې چې د تفریق حاصل یې ۲ کیږي.
بیا ۸ را کښته کووا و د تفریق د حاصل ښی خواته یې لیکو چې د ۲۸ عدد لاس ته راځي اوس د ۲۸ عدد په ۷ باندې ویشو د ژبنې ضرب څخه په ګټې اخیستنې سره پوهیږو چې ۲۸= ۷ × ۴ کیږي.
د ۴ عددپه خارج قسمت کې لیکو او په ۷ کې یې ضربوو، دا د ضرب حاصل د ۲۸ لاندې لیکو او له ۲۸ څخه یې تفریقوو. په نتیجه کې لیدل کیږي چې د تفریق حاصل یې صفر(پاتې) او خارج قسمت یې د ۱۴ عدد په لاس راځي.

دوهم مثال: د ۴۸ عدد په ٦ باندې ویشو، که چیرې د تقسیم د حاصل د پیدا کولو لپاره ژبني ضرب ته پاملرنه وکړو، لیدل کیږي چې. ۴۸ = ٦ × ۸

نو لیکلی شو چې: ۸ = ٦ ÷ ۴۸

او یا

۵×۶=۳۰
۶×۶=۳۶
۷×۶=۴۲
۸×۶=۴۸

$$\begin{array}{r|l} ۴۸ & ۶ \\ \hline -۴۸ & ۸ \\ ۰ & \end{array}$$

دریم مثال: د لاندې پوښتنو د حل طریقې ته پاملرنه وکړئ.

۲×۶=۱۲
۳×۶=۱۸
۴×۶=۲۴
۵×۶=۳۰

$$\begin{array}{r|l} ۲۵ & ۶ \\ \hline -۲۴ & ۴ \\ ۱ & \end{array}$$

پاتې شوی

۵×۷=۳۵
۶×۷=۴۲
۷×۷=۴۹
۸×۷=۵۶
۹×۷=۶۳

$$\begin{array}{r|l} ۶۱ & ۷ \\ \hline -۵۶ & ۸ \\ ۵ & \end{array}$$

پاتې شوی




لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

$$\begin{array}{r|l} ۷۲ & ۹ \\ \hline & \end{array} \qquad \begin{array}{r|l} ٦٣ & ۸ \\ \hline & \end{array} \qquad \begin{array}{r|l} ۹۴ & ٦ \\ \hline & \end{array}$$




۱- د لاندې عملیو خارج قسمت پیداکړئ.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۴۹ | ۷ | ۳٦ | ۸ | ۲۸ | ۷ | ۲۲ | ۷ |
| ۴٦ | ٦ | ۳۲ | ۸ | ۳۴ | ۴ | ٦۷ | ۸ |

۲ - لاندې پوښتنې حل کړي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۲۸ | ۳ | ۴۱ | ۷ | ۷۵ | ۸ |




کورنۍ دنده: لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۴۲ | ۲ | ۹۴ | ۴ | ۵۵ | ۵ |




۱- عبدالله غوارړي چې ۸۸ دانې نیالگي په ۹ پټیو کې په مساوي توگه کښینوي، معلوم کړئ چې څو نهاله زیات پاتې کیږي.

۲- که چیرې په یوه موټر کې ۹ تنه ځای شي نو د ۷۲ تنو له پاره څو موټرو ته اړتیا ده؟

۳- که چیرې په یوه غوري کې ۲ تنه ډوډۍ و خوري، معلوم کړئ چې د ٦۸ تنو لپاره څو غوریا نو ته اړتیا ده؟

۴- که چیرې یو زده کوونکی ٦ ټوله کتابچو ته اړتیا ولري، ۵٦ ټوکه کتابچې څو زده‌کوونکو ته رسیږي او څو کتابچې پاتې کیږي؟

۵- که چیرې یوې کورنۍ په یوه اونۍ کې ۸٦ کیلو واټه برق مصرف کړی وي، معلوم کړئ چې په یوه ورځ کې یې څو کیلو واټه برق مصرف کړی دی؟

۶- که چیرې یوتن په یوه ورځ کې ۸ گرامه بوره مصرف کړي، نو ۹٦ گرامه بوره د هغه د څو ورځو له پاره بس کېدلي شي؟

۷- ٦۳ تنه په ۹ موټرو کې ځي، که چیرې په هر موټرکې د سړیو شمېر سره مساوي وي، معلوم کړئ چې په هر موټرکې څوتنه ناست دي؟

# څلور څلویښتم لوست

## د درې رقمي عددونو تقسیم په یوه رقمي عدد باندې

هدف: زده کوونکي وکړای شي چې درې رقمي عددونه په یوه رقمي عدد باندې تقسیم کړي.

لومړی مثال: د ۶۹۳ عدد په ۳ باندې ویشو.
حل: لومړی د مقسوم د سلیزو مرتبه یعنی ۶ د ۳ په عدد باندې ویشو چې خارج قسمت یې ۲ کیږي. په خارج قسمت کې لیکو بیا ۲ په ۳ کې ضربوو او د ضرب حاصل یې د ۶ لاندې لیکو او تفریق کوو یې چې د تفریق حاصل یې صفر کیږي.
په همدې ډول د لسیزو او یویزو مرتبو رقمونه را کښته کوو او د ویش عملیه سرته رسوو، په پای کې لیدل کیږي چې پاتې یې صفر دی.

مقسوم علیه
مقسوم
۶۹۳ | ۳
−۶ | ۲۳۱
۰۹
−۹
۰۰۳
−۳
۰۰۰
د ویش حاصل
پاتې یې صفر دی

دوهم مثال: د ۱۳۶ عدد، د ۵ په عدد باندې ویشو. لیدل کیږي چې دسلیزو رقم له مقسوم علیه څخه کوچنی دی، نو د لسیزو رقم دسلیزو له رقم سره چې ۱۳ کیږي، په ۵ باندې ویشو. په دې صورت کې د ویش حاصل یې ۲ دی. ۲ په ۵ کې ضربوو، د ضرب حاصل یې له ۱۳ څخه تفریقوو چې د تفریق حاصل یې ۳ کیږي، اوس د مقسوم دیویز رقم یعنی ۶ را کښته کوو د۳۶عدد حاصلیږي. هغه په ۵ باندې وېشو چې د وېش حاصل یې ۷ کیږي. د ۷ عدد په ۵ کې ضربوو او د ضرب حاصل یې له ۳۶ څخه تفریقوو په پای کې لیدل کیږي چې د (۱) عدد پاتې شوی او له مقسوم علیه څخه کوچنی دی.

مقسوم علیه
مقسوم
۱۳۶ | ۵
−۱۰ | ۲۷
۳۶
−۳۵
۱
د ویش حاصل
پاتې شوی

## فعالیت:

د لاندې پوښتنو حل په نظر کې ونیسئ.

| | |
|---|---|
| ۵۷۴ | ۸ |
| ۵٦ | ۷۱ |
| ۱۴ | |
| _ ۸ | |
| ٦ پاتې | |

۷۰۹ ÷ ۷ = ۱۰۱

- ۷
۰۰۹
- ۷
۲ پاتې شوی

۹۶۰ ÷ ۶ = ۱۶۰

- ۶
۳۶
- ۳۶
۰۰۰ پاتې شوی

۶۳۶ ÷ ۶ = ۱۰۶

- ۶
۰۳۶
- ۳۶
۰ پاتې شوی

خرنګه چې د لسیزو د مرتبې رقم یعنې ۳ له مقسوم علیه څخه کوچنی دی، د خارج قسمت په اړوند مرتبه کې صفر لیکو. او بیا دمقسوم بل عدد را کښته کوو.

کورنی دنده

تقسیم کړي.

| | |
|---|---|
| ۲۸۴ | ۶ |

| | |
|---|---|
| ۴۵۲ | ۳ |




۱- په لاندې پوښتنو کې د تقسیم عملیې سرته ورسوئ ؟

١٧٠ | ٩     ٦٦ | ٧     ٤١ | ٦     ٨٦٧ | ٥

٢٨٥ | ٣     ١٦٨ | ٨     ٣٧٥ | ١     ٤٢٠ | ١

٤٩٨ | ٨     ١٠٠ | ٧     ٧٠٩ | ٧     ٩٦٠ | ٦

۲- یوه بزگر ۹۸۰ کیلو گرامه غنم حاصل واخیست، که چیرې نوموړی بزگر د ورځې ۷ کیلو گرامه غنم مصرف ولري، معلوم کړئ چې نوموړي غنم د بزگر د څو ورځو له پاره بس دي.

۳- یوه بڼوال ۸۰۱ کیلو گرامه زردآلو حاصل واخیست، که چیرې وغواړي هغه په ۹ کیلو گرامه صندوقونو کې واچوي، نو څو صندوقونو ته اړتیا پیدا کوي. د اړتیا وړ صندوقونو شمېر معلوم کړئ؟




زده کوونکي دې لاندې پوښتنې حل کړي.

٦٧٣ | ٢     ١٠٧ | ٣     ٥٠٠ | ٥



# پنځه څلویښتم لوست

## د ضرب او تقسیم د عملیو ازموینه د یو بل په واسطه

هدف: زده کوونکی به وکړای شي چې د ضرب او تقسیم عملیې د یو بل په واسطه وآزمایي.


١٨÷٦=٣


١٨÷٣=٦


٦×٣=١٨

د ضرب او تقسیم د آزموینلو د عملیو په کار ولو سره لیکلی شو چې:

| | | |
|---|---|---|
| ٥×٦=٣٠ | ٧×٤=٢٨ | ١١×٦+٢=? |
| ٣٠÷٦=٥ | ٢٨÷٤=٧ | ٦٦+٢=٦٨ |
| ٣٠÷٥=٦ | ٢٨÷٧=٤ | |

٦٨ | ٦
- ٦ | ١١
———
٨
- ٦
———
٢

د پورتنیو پوښتنو له حل څخه نتیجه اخستلای شو، که چیرې د ضرب حاصل دضرب په یوه جز باندې و ویشو، د ضرب بل جز لاس ته راځي او همدارنګه، که چیرې مقسوم علیه په خارج قسمت کې ضرب او له پاتې شوي عدد سره یې جمع کړو مقسوم لاس ته راځي.




د ٦ او ٨ د ضرب حاصل په لاس راوړئ او دهغه له پاره د وېش یا تقسیم دوه عملیې ولیکئ.




١- مثال ته په پاملرنې سره په تشو ځايونو كې مناسب عددونه وليكئ.

مثال:

| | |
|---|---|
| ٥۴ ÷ ٦ = [٩] | ٧٢ ÷ ٩ = [ ] |
| [٥۴] ÷ ٩ = ٦ | ٧٢ ÷ ٨ = [ ] |
| ٦ × [٩] = ٥۴ | [ ] × ٨ = ٧٢ |
| ٣٢ ÷ ۴ = [ ] | ٢١ ÷ ٣ = [ ] |
| [ ] ÷ ٨ = ۴ | [ ] ÷ ٧ = ٣ |
| [ ] × ٨ = ٣٢ | ٣ × [ ] = ٢١ |

٢- تش ځايونه په مناسبو عددونو سره ډك كړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ٧×٨= [٥٦] | ٩×٨= [٧٢] | ٩×٧= [٦٣] |
| ٥٦÷٨= [ ] | ٧٢÷٨= [ ] | ٦٣÷٧= [ ] |
| ٥٦÷٧= [ ] | ٧٢÷٩= [ ] | ٦٣÷٩= [ ] |

٣- په لاندې پوښتنه كې د مقسوم ، مقسوم عليه او خارج قسمت ترمنځ اړيكې په غور سره وګورئ او تش ځايونه يې ډك كړئ.

خارج قسمت — مقسوم عليه — مقسوم

١٥ ÷ ٣ = ٥

٣ × ٥ = ١٥

د مقسوم ويشل په مقسوم عليه باندې د خارج قسمت د پيدا كولو څخه عبارت دي، كه چيرې خارج قسمت په مقسوم عليه كې ضرب كړو مقسوم په لاس راځي.

۴- لاندې پوښتنې حل او امتحان کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۹۷۰ ÷ ۸ | ۶۴۰ ÷ ۵ | ۹۷۲ ÷ ۸ |
| ۱۰۰ ÷ ۹ | ۱۰۵ ÷ ۸ | ۷۰۶ ÷ ۶ |

۵- د ۵ متره تیوکر بیه ۷۵ افغانۍ ده، د یوه متر تیوکر بیه معلومه کړئ.

۶- که چیرې یو کارگر په میاشت کې ۲۱۰ متره تیوکر وابودي، معلوم کړئ چې نوموړی کارگر په ۹ ورځو کې څو متره تیوکر اوبدلای شي؟

۷- که چیرې یو مامور په یوه اونۍ کې ۵۶۰ افغانۍ تنخا (معاش) واخلي، معلوم کړئ چې په یوه ورځ کې څو افغانۍ تنخا لري.




لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | |
|---|---|
| ٦٠٩ ÷ ۸ | ٦١١ ÷ ۸ |

# يوولسم فصل
# كسر

## شپږ ځلوېښتم لوست:

هدف: زده کوونکی به $\frac{١}{٢}$ د یوه شي د نیمايي په توگه، $\frac{١}{٣}$ د یوه شی د دریمي برخې په توگه. او $\frac{٢}{٣}$ د یوه شي دوه دریم برخي په توگه وپیژني.

**پاملرنه وکړئ:**

که مونږ یوه منه په دوو مساوي برخو وویشو په حقیقت کې مومنه نیمايې کړې ده چې په ریاضي کې داسې لیکل کیږي: $\frac{١}{٢}$

که مونږ یوه منه په درې مساوي برخو وویشو او له هغې څخه یوه برخه واخلو دریمه برخه داسې ښودل کیږي. $\frac{١}{٣}$







که چیرې د یوې منې له دریو برخو څخه یوه برخه په یوه قاب کې او دوه برخې یې په بل کې کښیږدو داسې لیکو:

الف: $\frac{١}{٣}$ برخه په یوه قاب کې




ب: $\frac{٢}{٣}$ برخې په بل قاب کې



د لاندې شکلونو اړوندو کسرونو ته پاملرنه وکړئ.




د الف په شکل کې د $\frac{١}{٢}$ کسر ښيي چې د دوو برخو څخه يې يوه برخه يې جلا شوې ده.

د (ب) په شکل کې د $\frac{١}{٣}$ کسر ښيي چې له دريو برخو څخه يې يوه برخه يې جلا شوې ده.

د (ج) په شکل کې د $\frac{١}{۴}$ کسر ښيي چې له څلورو برخو څخه يې يوه برخه جلا شوې ده.

د (د) په شکل کې د $\frac{١}{۶}$ کسر ښيي چې له شپږو برخو څخه يوه برخه جلا شوې ده.

د دې لپاره چې تا سو د يوه کسر د ليکلو سره ښه بلدتيا پيدا کړئ، لاندې کسر ته پاملرنه وکړئ.






۱- د لاندې شکلونو د تورو شوو او سپينو برخو کسري برخې په خپلو کتابچو کې ښياست او ويې ليکئ.





____ ____ ____ ____

توره سپينه سپينه توره

۲- لاندې جدول بشپړ کړئ.

| مخرج | صورت | کسر |
|---|---|---|
| ۲ | ۱ | $\frac{۱}{۲}$ |
| | | $\frac{۲}{۳}$ |
| | | $\frac{۳}{۵}$ |
| | | $\frac{۴}{۵}$ |
| | | $\frac{۵}{۶}$ |




د $\frac{۲}{۵}$، $\frac{۴}{۵}$، $\frac{۲}{۳}$ په کسرونو کې صورت او مخرج وليکئ.

۳- له لاندې جدول څخه کسرونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

| صورت | ۳ | ۴ | ۵ | ٦ | ۲ | ۱ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مخرج | ۴ | ۷ | ۸ | ۷ | ۵ | ٦ |
| اړوند کسر | $\frac{۳}{۴}$ | | | | | |

۴- کوم شکل په دوو مساوي برخو ویشل شوی دی، د هغه اړوند کسر په خپلو کتابچو کې ولیکئ.




۵- کوم شکل په درې مساوي برخو ویشل شوی دی، د هغه اړوند کسر په خپلو کتابچو کې ولیکئ.




کورنی دنده

د $\frac{۱}{۳}$، $\frac{۲}{۳}$، $\frac{۱}{۴}$ کسر د شکلو نو په واسطه په خپلو کتابچو کې وښیاست.

۶- په لاندې شکلونو کې کوم یوه ته $\frac{۱}{۴}$ کسر لیکلی شو.




۷- په لاندې شکلونو کې د رنګ شوي برخو او سپینو برخو کسرونه، د نمونې په ډول په تشه ځایونو کې ولیکئ.

الف

| | |
|---|---|
| مساوي برخې | څلور |
| رنګ شوی | $\frac{۳}{۴}$ |
| سپینه | $\frac{۱}{۴}$ |

ب

| | |
|---|---|
| مساوي برخې | |
| رنګ شوي | |
| رنګ شوي نه دي | |

ج

| | |
|---|---|
| مساوي برخې | |
| رنګ شوي برخې | |
| سپینې برخې | |

۸- لاندې شکلونو ته پاملرنه وکړئ، د سپینې او رنګه شوي برخې په کسر سره ولیکئ.

الف

| | |
|---|---|
| مساوي برخې | |
| رنګ شوي برخې | |
| سپینې برخې | |

ب

| | |
|---|---|
| مساوي برخې | |
| رنګ شوي برخې | |
| سپینې برخې | |

ج

| | |
|---|---|
| مساوي برخې | |
| رنګ شوي برخې | |
| سپینې برخې | |

۹- لاندې هر یو شکل په خپلو کتابچو کې رسم کړئ، د هر شکل د اړوند کسر په نظر کې نیولو سره د هغه برخې په خپلو کتابچو کې توري کړئ.




۱۰- د حل شوي مثال په ډول د لاندې شکلونو د رنګ شوو برخو کسر کیڼې خواته او د سپینو برخو کسر ښۍ خواته ولیکئ.

| | |
|---|---|
| ۱/۹ | ۸/۹ |
| ___ | ___ |
| ___ | ___ |
| ___ | ___ |
| ___ | ___ |
| ___ | ___ |
| ___ | ___ |
| ___ | ___ |
| ___ | ___ |

۱۱- د لاندې شکلونو د رنګ شوو او سپينو برخو اړوند کسرونه په غور سره وګورئ. د اړوند شکل په کارولو سره لوی کسر او کوچنی کسر په شفاهي توګه وښیاست.







د $\frac{۲}{۳}$، $\frac{۲}{۵}$، $\frac{۲}{۷}$، $\frac{۲}{۸}$ او $\frac{۲}{۹}$ کسرونه د شکل په رنګولو سره وښیاست.

۱۲- د $\frac{۳}{۵}$ ، $\frac{۳}{۷}$ ، $\frac{۳}{۸}$ او $\frac{۳}{۹}$ کسرونه د شکل د رنګولو په واسطه وښیاست.

۱۳- د $\frac{۴}{۵}$ ، $\frac{۴}{۶}$ ، $\frac{۴}{۷}$ ، $\frac{۴}{۸}$ او $\frac{۴}{۹}$ کسرونه په شکل کې وښیاست.

۱۴- د $\frac{۵}{۶}$ $\frac{۵}{۷}$ $\frac{۵}{۸}$ او $\frac{۵}{۹}$ کسرونه د شکل د رنګولو په واسطه وښیاست، رنګ شوې او سپینې برخې سره پرتله کړئ او د $>$،$<$ او $=$ نښو په واسطه یې وښیاست.

۱۵- د لاندې شکلونو د رنګ شوو برخو کسر ښۍ خواته او د سپینو برخو اړوند کسر کیڼې خواته ولیکئ.



۱۶- د لاندې شکلونو د رنګ شویو برخو کسر ښۍ خواته او د سپینو برخو کسر کیڼې خواته ولیکئ او یو له بله سره یې پرتله کړئ.



کورنۍ دنده

د لاندې شکل د رنګ شوو برخو کسر کیڼې خواته او د سپینو برخو کسر ښۍ خواته ولیکۍ او پرتله یې کړئ.






۱- احمد د یوه مستطیل کاغذ څخه $\frac{۱}{۳}$ برخه پرېکړه، تاسو هم دا کار په عملي توګه سرته ورسوئ او وواياست چې څومره برخه يې پاتې ده، په کسر سره يې وښياست.

۲- کريم یوه دايره په درې مساوي برخو ووېشله او د هغې $\frac{۲}{۳}$ برخې يې تورې کړې، څومه برخه يې سپينه پاتې ده؟ د رسم په واسطه يې وښياست.

۳- د لاندې شکلونو د رنګ شوو او سپينو برخو کسر په خپلو کتابچو کې وليکئ.



۴- یو ليتر اوبه څو ګيلاسه کيږي؟

۵- یوه دايره رسم کړئ $\frac{۱}{۴}$ برخه يې توره کړئ.

۶- له یوه ګيلن اوبو څخه یو ليتر اوبه څرنګه جلا کوئ؟

۷- د >،< او = نښو په کارولو سره لاندې درکړل شوي وزنونه سره پرتله کړئ.

الف: ۵۰۰ ګرامه ☐ ۲ کيلو ګرامه

ب: ۳ کيلو ګرامه ☐ ۳۰۰ ګرامه

ج: ۷۵۰ ګرامه ☐ نيم کيلو ګرامه

د: ۲۵۰ ګرامه ☐ ۷۵ ګرامه+ ۱۰۰ ګرامه + ۲۵ ګرامه

---

کورنۍ دنده

یو مستطيل رسم کړئ چې اوږدوالی يې ٦ سانتي متره او سور يې ۳ سانتي متره وي، بيا د هغې $\frac{۱}{۲}$ برخه توره کړئ.

۸- یو تن آشپز ۷۵۰ گرامه وریژې درلودلې چې ۴۵۰ گرامه یې له هغو څخه پخې کړي معلومې کړئ چې څو گرامه وریژې یې پاتې دي.

۹- یوه ډوډۍ پخوونکي یو کیلو گرام خمیره درلودله چې له ۳ ورځو څخه وروسته ۲۵۰ گرامه خمیره ورسره پاتې وه، معلومه کړئ چې په دریو ورځو کې یې څومره خمیره مصرف کړې ده؟

۱۰- یوې مور ۵ کیلو گرامه وریژې، ۵۰۰ گرامه بوره، ۲۵۰ گرامه غوړي او ۲۵۰ گرامه لوبیا واخیستل. د ټولو شیانو وزن معلوم کړئ.

۱۱- لاندې شیان د څه شي په واسطه اندازه کیږي، ځوابونه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ؟

الف: نفت ☐

ب: د وره لوړوالی ☐

ج: اوبه ☐

د: بوره ☐

که چیرې یو لوښی د ۱۲ معمولي گیلاسونو اوبو ځای ولري، معلوم کړئ چې په نوموړي لوښي کې څو لیتره اوبه ځاییږي؟

۱۲- د لوست توکي او لوازم چې لاندې اندازې ولري، وښیاست.

الف: له ۹ سانتي مترو څخه لږ وي.

ب: د یوه متر په حدودو کې وي.

ج: د ۱۰ او ۲۰ سانتي مترو په منځ کې وي.

۱۳- د ۳ سانتي مترو، ۷ سانتي مترو او ۱۲ سانتي مترو په اندازه خطونه رسم کړئ.

۱۴- د هر غوري خوړو لپاره ۳ منهو لرونکي یو قاب ته اړتیا ده، که چیرې ۲۱۰ دانې منې ولرو څو دانو غوریو او څو دانو قابونو ته اړتیا ده؟

۱۵- د ٦ دانو قلمونو بیه ٦٦ افغانۍ ده، د ۷ دانو قلمونو بیه معلومه کړئ؟

۱۶- زرغونه اوس ۱۲ کلنه ده له ۳ کلو وروسته د هغې عمر معلوم کړئ.

۱۷- که چیرې احمد د ورځې ۹ افغانۍ سپما وکړي، د هغه د یوې کال او یوې میاشتې د سپما اندازه معلومه کړئ؟